# د کتاب پېژندنه:


- د کتاب نوم : .......... لوي ګناهونه د دوږخ لمبې دي
- تالیف : .......... مولوي عبدالهادي "حماد"
- کمپوز او ډیزاین : .....د حمادیې مدرسې د کمپیوټر څانګه
- د چاپ شمېر : .............................(۱۰۰۰)
- د چاپ کال : ......۱۳۹۴هـ ل مطابق د ۱۴۳٦هـ ق کال
- د چاپ وار : ............................ لومړی وار
- خپروونکی : .....مدرسة العلوم الاسلامیة الحمادیة
- اړیکي : .......۰۷۰۰۳۷۴۵۲۴ / ۰۷۰۰۳۰۸۹۲۹
- پته : ..لویه ویاله، فامیلۍ پله ته څېرمه -کندهار

# د مضامینو فهرست

| شمېره | لړلیک | مخ |
| --- | --- | --- |

بسمہ تعالی

# مقدمه

نَحۡمَدُهٗ وَنُصَلِّيۡ وَنُسَلِّمُ عَلٰى رَسُوۡلِهِ الۡكَرِيۡمِ

درنو لوستونکو!

څښتن تعالیﷻ د بشریت د ژوندانه د سمون او ټکاو لپاره تر ټولو قوانینو ستر او غوره قانون قرآن کریم رالیږلی دئ، څوک چې منګولي ورباندي ټینګي کړي او د عملیت ویاړ یې ځان ته خپل کړي نو د دنیا او آخرت سرلوړي به یې په برخه وي؛ ځکه د اصحابو کرامو رضي الله عنهم ژوند د دغه خبري دثبوت لپاره ښه بېلګه ده. دوی مبارکانو ته اللهﷻ د دغه قرآن د عمل کولو په برکت په دنیا کي داسي ژوند او برياوي ور په برخه کړي چي تر نن پوري يې د دنيا کفار ګوته په غاښ کښېنولي دي او په آخرت کي هم اللهﷻ د داسي ژوند وعدې ورکړي دي، چي انسان ته دا حس وربخښي چي کاشکي موږ هم د دوی د ژوند مله واي.

په دغه قرآن کريم کي الله ﷻ پنځه (۵) شيان ښودلي دي:

**لومړی** (امر) يعني الله ﷻ په دغه قرآن کي ځيني داسي شيان ښودلي دي، چي انسانان اړ دي چې هغه کارونه ترسره کړي . د يادوني وړ ده چې دغه امر په دې معنا نه دئ چي الله ﷻ د داسي کار و کولو ته انسانان اړ کړي دي، چي د دوی تر توان وتلي دي او يا پر دوی باندي تېری او ظلم دئ، بلکي ټول داسي کارونه دي چي په دنيا کي د انسانانو د ژوند سمون په راځي.

**دوهم** شی چي الله ﷻ په قرآن کي ښودلی دئ (نهي) دئ يعني الله ﷻ د يو لړ کارو څخه انسانان منعه کړي دي. د دې کارونو په منع کي هم د داسي کار څخه منعه نه ده راغلې، چي د انسان دي ګټه پکښې وي او دی دي ځني منع سوی وي، بلکي ټول داسي کارونه دي چي د انسان د نوي ژوند تاوانونه پکښې نغښتي دي.

**درېيم** (وعد) دئ يعني الله ﷻ په قرآن کريم کي د هغه انسانانو لپاره د جنت وعده کړې ده، چي په دنيا کي د الله ﷻ او د رسول الله ﷺ تابعداري کوي.

**څلورم** (وعيد) يعني الله ﷻ په قرآنکريم کي د هغه کسانو لپاره د سخت عذاب وعده کړې ده، چي د الله ﷻ او د محمد ﷺ تابعداري نه کوي.

**پنځم** (قصص) دي يعني الله ﷻ په قرآن کريم کي د پخوانيو انبياوو، رسولانو او امتون قصې بيان کړي دي د دې لپاره چي دا امت د هغو پخوانيو امتونو د حالاتو څخه عبرت واخلي چي پر دوي باندي تېر سوي دي.

په معاصر وخت کي چي اوسنی امت د نبوي وړانګو څخه ډېر ليري دئ، شيطان د خپلي واکمنۍ د غښتلي کولو لپاره ډول – ډول

د سیسې په کار اچولي دي ترڅو خپل پیروان ډېر کړي او ټوله د دوږخ و کندو ته وغورځوي. خلګ د ښو کارونو و کولو ته زړه نه ښه کوي، بلکي یو دروند بار ورته ښکاري او بدو کارونو ته په مینه – مینه ورځغلي او حال دا چي د قرآن کریم د مهمو ارکانو څخه یو د بدو کارونو څخه منعه ده او الله ﷻ د دې امت د غوره والي لامل په ښو کارونو امر کول او د بدو کارونو څخه منعه کول بللی دئ، ځکه الله ﷻ فرمايي :

﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ﴾ (۱)

ژباړه: تاسو غوره امت یاست چي د خلګو (د ګټي لپاره) استول سوي یاست، په نیکو کارونو سره امر کوئ او د بدو کارونو څخه منعه کوئ او پر الله ﷻ باندي ایمان لرئ.

د پورتنی آیت څخه په ښکاره معلومېږي چي د دې امت د غوره والي لامل دا دئ، چي دوي په ښو کارونو امر وکړي او د بدو کارونو څخه منعه وکړي.

که بالعکس پورتنی کار پاته سي او پر ځای یې بد کارونو شروع سي نو دا ډېره بده ده؛ ځکه که یو عام سړی یو بد کار وکړي خلګ ډېره پاملرنه نه ورته کوي او که یو مشرف سړی بد کار وکړي د ټولو خلګو په خولو کي وي. دا چي خبره مو ډېره اوږده نه سي نو خپلي موخي ته راځو هغه دا ده: لکه څرنګه چي د الله ﷻ ټولو امرونو ته غاړه ایښودل عبادت دئ او غاړه ځني غړول معصیت دئ، خو د ځینو دلائلو په شتون کي معصیت (ګناه) پر دوه (۲) ډوله دئ:

---

(۱) سورة آل عمران، الاية: ۱۱۰.

لومړی هغه معصیت دئ چې په کبیره ګناه سره یې تعبیر سوی دئ یعني لویه ګناه.

دوهم هغه معصیت دئ چې په صغیره ګناه سره یې تعبیر سوی دئ یعني کوچنۍ ګناه.

که څه هم د کبیره ګناهونو په شمېر کې اختلاف سته او یو شمېر کتابونه هم پکښې لیکل سوي دي، چې "الزواجر عن اقتراف الکبائر" او "کتاب الکبائر" یې د یادوني وړ دئ خو زما د څېړني له مخي داسي کتاب شتون نه درلودئ، چې په اسانه او روانه پښتو دي د هغه ګناهونو عذابونه په لنډ ډول بیان سوي وي چې په معاصر وخت کې ډېر زیات دود دي او ډېر خلګ په اخته دي، نو عاجز بنده دغه رساله په څو پاڼو کې ولیکل چې مشهور لوي ګناهونه یې د "کتاب الکبائر" او "الزواجر" څخه راواخیستل څو د دې امت لپاره د الله ﷻ په امېد د نجات یوه وسیله جوړه سي.

زما په اند دا هم یقیني خبره ده چې ځیني ګناهونه تر ځینو نورو لوي دي او د لویو ګناهونو په لړ کې لومړۍ لویه ګناه شرک دئ یعني د الله ﷻ سره شریک نیول. شرک په خپل ځان کی پر دوه (۲) ډوله دئ:

یو شرک اکبر (لوي شرک) دئ چې د الله ﷻ سره په خدایي کې بل څوک شریک ونیسي، لکه: لمر، سپوږمۍ، اور او داسي نورو ته چې عبادت کوي او هغه غوښتني ځني کوي لکه د سپېڅلي څښتن تعالی جَلَّ جَلَالُهُ څخه چې کېږي.

دوهم شرک اصغر (کوچنی شرک) دئ چې په اعمالو (نیکو کړنو) یا صدقاتو کې چې ریا کوي یعنی پورته کړني په دې موخه کوي چې خلګ ښه نېک سړی راته ووایي. نوموړی عبادت د دې ترڅنګ چې عبادت نه دئ او ثواب نه لري کبیره (لویه) ګناه هم ده. تر

ټولو ستره او لویه ګناه شرک اکبر (لوی شرک) دئ، چي په هیڅ ډول د توبې پرته نه بخښل کېږي، تفصیل یې په لاندي ډول دئ:

## لومړۍ لویه ګناه: د الله ﷻ سره شریک نیول

هر مؤمن ته لازمه ده چي د الله ﷻ په اړه داسي عقیده ولري، چي الله ﷻ واحد لاشریک ذات دئ. د الله ﷻ سره نه څوک په ذات کي شریکېدای سي او نه هم په صفاتو کي څوک شریکېدای سي، بلکي د درست جهان تمام کارونه الله ﷻ کوي بل هیڅوک د مداخلې حق نه لري او که څوک یو ډول نه یو ډول د الله ﷻ سره شریک ونیسي یا په ذات کي یا په صفاتو کي دا هغسي ستره ګناه ده چي هیڅکله نه بخښل کېږي، ځکه الله ﷻ فرمایي:

﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغۡفِرُ أَن يُشۡرَكَ بِهِۦ وَيَغۡفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَآءُۚ وَمَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱفۡتَرَىٰٓ إِثۡمًا عَظِيمًا ٤٨﴾ [سورة النساء، الاية: ۴۸]

ژباړه: باور وکړئ الله ﷻ هیڅکله د شرک کولو ګناه نه بخښي او د شرک پرته نوري ګناوي بخښي که یې چاته خوښه سوه او که چا د الله ﷻ سره شریک ونیوئ نو یقیني خبره ده چي ده یوه ډېره لویه ګناه وکړه.

پاته دي نه وي چي شرک دوه (۲) ډوله دئ: یو شرک اکبر دئ یعني لوی شرک او بل شرک اصغر دئ یعني کوچنی شرک، چي د دواړو د بدیو اړونده الهي او نبوي لارښووني تریوه بریده رانقلوو:

# شرک اکبر (لوی شرک)

د لوی شرک په اړه ډېر آیتونه او حدیثونه راغلي دي چې د دوارو څخه به نمونه ذکر کړو، الله ﷻ فرمايي:

﴿إِنَّ ٱلشِّرۡكَ لَظُلۡمٌ عَظِيمٞ ١٣﴾ [سورة لقمان، الاية: ۱۳]

ژباړه: باور وکړئ د الله ﷻ سره شریک نیول لوی ظلم دئ.

همدا ډول الله ﷻ بل ځای فرمايي:

﴿مَن يُشۡرِكۡ بِٱللَّهِ فَقَدۡ حَرَّمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ ٱلۡجَنَّةَ وَمَأۡوَىٰهُ ٱلنَّارُ﴾ [سورة المائدة، الاية: ۷۲]

ژباړه: هغه څوک چې د الله ﷻ سره شریک ونیسي په یقیني ډول الله ﷻ جنت باندی حرام کړی دئ او ځای به یې دوږخ وي.

د الله ﷻ د سپیڅلو ارشاداتو څخه په څرګند ډول معلومېږي، چې څوک د الله ﷻ سره شریک ونیسي په دوږخ کي یې تل او سېدل حتمي دي. د دې خبري د لا اثبات لپاره د سیدالبشر ﷺ ډېر احادیث راغلي دي. د بیلګي په ډول د رسول الله ﷺ څخه روایت دئ، چې رسول الله اصحابو کرامو رضي الله عنهم ته وفرمایل: آیا زه تاسو ته تر ټولو په لویه ګناه خبر در نه کړم؟ رسول الله ﷺ درې ځله دغه خبره تکرار کړه. اصحابو کرامو رضي الله عنهم وویل: خبر مو کړه یا رسول الله ﷺ! رسول الله ﷺ وفرمایل: لاندي شیان تر ټولو لوي ګناهونه دي:

۱. د الله جل جلاله سره شریک نیول.

۲. د مور او پلار ازارول.

د حديث روايت کوونکی وايي: رسول الله ﷺ تکيه وهلې وه د درېيم شي په ښوولو سره راکښېناستي او و يې فرمايل: خبر اوسئ! ناحقه خبره او ناحقه شاهدي لويه گناه ده، دا خبره يې تکرارول تر داسي بريده چي موږ وويل: کاشکي يې دا خبره پرې ايښې وای.[٢]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: د اوو هلاک کوونکو شيانو څخه ځان وساتئ د دغو اوو شيانو په لړ کي رسول الله ﷺ يو شرک ذکر کړئ.[٣]

## شرک اصغر (ريا کول): کوچنی شرک

کوچنی شرک د ريا کولو څخه عبارت دئ يعني دا چي که څوک کوم نېک عمل کوي، مثلاً: لمونځ ، حج، زکات، صدقه او داسي نور کوي خو د دې لپاره يې کوي چي خلک راته ښه انسان ووايي، دا لويه گناه ده آن تر دې چي ورته کوچنی شرک ويل سوی دئ او په اړه يې الله جل جلاله فرمايي:

﴿فَمَن كَانَ يَرْجُوا لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا ﴿١١٠﴾﴾ [سورة الكهف، الاية: ١١٠]

---

[٢] و عن أَبي بكرة نُفَيع بن الحارث رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُول الله ﷺ : ألا أُنَبِّئُكُمْ بأكْبَرِ الكَبَائِرِ؟ ثلاثاً قُلْنَا: بَلَى! يَا رَسُول الله! قَالَ :الإشْرَاكُ بالله، وَعُقُوقُ الوَالِدَيْنِ، وكان مُتَّكِئاً فَجَلَسَ، فَقَالَ: ألاَ وَقَوْلُ الزُّورِ وَشَهَادَةُ الزُّورِ فَمَا زَالَ يُكَرِّرُهَا حَتَّى قُلْنَا: لَيْتَهُ سَكَتَ. (أخرجه البخاري: ٢٢٥/٣ (٢٦٥٤ )، ومسلم: ٦٤/١ ( ٨٧ ) ( ١٤٣))

[٣] وعن أَبي هريرة رضي الله عنه عن النبيِّ ﷺ قَالَ: اجْتَنِبُوا السَّبْعَ المُوبِقَاتِ ! قالُوا: يَا رَسُولَ الله! وَمَا هُنَّ؟ قَالَ: الشِّرْكُ باللهِ، والسِّحْرُ، وَقَتْلُ النَّفْسِ الَّتي حَرَّمَ اللهُ إلاَّ بالحَقِّ، وأكلُ الرِّبَا، وأكْلُ مَالِ اليَتِيمِ، والتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ، وقَذْفُ المُحْصَنَاتِ المُؤْمِنَاتِ الغَافِلاَتِ. (أخرجه البخاري: ١٠١٧/٣، رقم: ٢٦١٥، ومسلم: ٩٢/١، رقم: ٨٩، وأبو داود: ١١٥/٣، رقم: ٢٨٧٤، والنسائى: ٢٥٧/٦، رقم: ٣٦٧١. و أخرجه أيضًا ابن حبان: ٣٧١/١٢، رقم: ٥٥٦١، والبيهقى: ٢٨٤/٦، رقم: ٢٤٤٧)

ژباړه: څوک چي د الله جل جلاله د ملاقات امېد لري نو نېک عمل دي وکړي او د خپل رب جل جلاله په عبادت کي دي څوک نه شريکوي.

يعني عبادت دي د خلګو لپاره نه کوي چي ريا ورته وايي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارکو اصحابانو ته وفرمايل: زه پر تاسو باندي د کوچني شرک کولو څخه زيات بېرېږم يعني په نيکو عملونو کي د ريا کولو څخه. د قيامت په ورځ چي الله صلی الله علیه وسلم خلګو ته د نيکو عملونو مزدوري ورکوي ريا کوونکو ته به ووايي: ولاړسئ! ستاسو لپاره مزدوري نه سته هغه کسانو ته ورسئ چي د هغو لپاره مو نېک کارونه کول.

يعني د نامه لپاره مو کارونه کول چي خلګ مو په ښه نامه ياد کړي نو هغه خلګو ته ورسئ، چي د هغو لپاره مو کار کاوه هغه دي مزدوري در کړي.[٤]

ابي سعيد رضي الله عنه فرمايي: ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي چي داسي يې وفرمايل: کله چي د حشر پر ميدان باندي اولين او آخرين ټول خلک جمع سي نو يو آواز کوونکی به آواز وکړي: چا چي عمل د چا لپاره کړی دئ د هغه څخه دي ثواب وغواړي الله جل جلاله د شريکانو حاجت نه لري.

يعني دا چي که چا عمل و خلکو ته د ځان ښودني لپاره کړی وي نو د خلکو څخه دي د ثواب غوښتنه وکړي د ده ثواب د الله جل جلاله سره نه سته.[٥]

---

[٤] إِنَّ أَخْوَفَ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمْ الشِّرْكُ الْأَصْغَرُ الرِّيَاءُ يَقُولُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِذَا جَزَى النَّاسَ بِأَعْمَالِهِمْ: اذْهَبُوا إِلَى الَّذِينَ كُنْتُمْ تُرَاءُونَ فِي الدُّنْيَا أُنْظُرُوا هَلْ تَجِدُونَ عِنْدَهُمْ جَزَاءً. (أخرجه الطبرانى: ٢٥٣/٤، رقم: ٤٣٠١. قال الهيثمى ٢٢٢/١٠: رجاله رجال الصحيح، غير عبد الله بن شبيب بن خالد، وهو ثقة.

[٥] عن أبي سعيد بن أبي فضالة الأنصاري و كان من الصحابة قال: سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم يقول: إذا جمع اللهُ الأولين والآخرين يومَ القيامةِ ليومٍ لاريبَ فيه نادى مُنادٍ: من كان أشرك فى عملٍ عَمِله لله أَحَدًا

# دوهمه لويه ګناه: په ناحقه د مؤمن وژل

د مؤمن مسلمان په ناحقه يعني د شرعي اجازې پرته وژل لويه ګناه ده، ځکه الله جل جلاله فرمايي:

﴿وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا ۝٩٣﴾[سورة النسآء، الاية:٩٣]

ژباړه: څوک چي مؤمن په قصدي توګه قتل کړي سزا به يې همېشه دوږخ وي، د الله جل جلاله غضب او لعنت به باندي وي او الله جل جلاله لوي عذاب ورته برابر کړی دئ.

که څه هم مؤمن مسلمان هر څومره ګناهونه وکړي خو دائمي جهنم الله جل جلاله نه ورکوي مګر دلته الله جل جلاله قاتل ته د دائمي سزا يادونه کړې، دا په دې معنا ده چي د قتل په بدله کي الله جل جلاله دومره ستره او اوږد مهاله سزا ورکوي، چي بيخي د دائمي سزا سره ورته والی لري او يا دا چي ځيني علماء بيخي په دې آند دي چي د قتل په کولو بيخي ايمان ځي ځکه نو د قاتل لپاره همېشه د جهنم سزا ده.

د مؤمن وژني په اړه رسول صلی الله عليه وسلم داسي فرمايلي دي:

د اوو بربادوونکو شيانو څخه ځان وژغورئ يو يې د مؤمن ناحقه وژل ياد کړی دئ يعني دا چي د مؤمن وژنه د ځان بربادول دي.[٦]

---

فَلْيَطْلُبْ ثَوَابَهُ من عندِهِ فإن اللهَ أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عنِ الشِّرْكِ. (أخرجه أحمد: ٤٦٦/٣، رقم: ١٥٨٧٦، والترمذى: ٣١٤/٥، رقم: ٣١٥٤، وقال : حسن غريب. وابن ماجه)

(٦) عن أبي هريرة رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم قال: اجتنبوا السبعَ المُوبِقَات: الشركُ بالله، والسِّحْرُ، وقتلُ النفسِ التى حرم الله إلا بالحق، وأكلُ الربا، وأكلُ مالِ اليتيم، والتولِّي يومَ الزَّحْف، وقذفُ المحصنات الغافلات

د رسول الله ﷺ څخه يو سړي پوښتنه وکړه، چي کومه گناه د الله جل جلاله په نزد ډېره لويه ده؟ رسول ﷺ وفرمايل: دا چي ته د الله جل جلاله سره شريک ونيسي حال دا چي ته يې پيدا کړي يې. هغه سړي وويل: بيا کومه گناه ډېره لويه ده؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: دا چي ته خپل اولاد ووژنې د دې ويري څخه چي په نس به يې موږ نه کړم. هغه سړي وويل: بيا کومه گناه لويه ده؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: دا چي د همسايه د بي بي سره زنا وکړې. الله جل جلاله د رسول الله ﷺ د خبري د تاييد لپاره دا آيت نازل کړ:

﴿وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُوْنَ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ يَلْقَ اَثَامًا ﴿٦٨﴾﴾ [سورة الفرقان، الاية: ٦٨]

ژباړه: هغه کسان چي د الله جل جلاله پرته بل چا ته د خدايي آواز نه کوي، قتل نه کوي مگر په حق سره او زنا نه کوي او که چا دا کار وکړ، د سزا سره به مخ سي.[۷]

ښکاره او ربښتيا خبره ده چي د بشري ټولني د خالق او مالک په ټولو امرونو کي خامخا يو حکمت رانغښتی وي، نو څنگه چي عظيم رب جل جلاله و بشريت ته انسان وژنه ستره گناه ښوولې ده سالم فکر هم په دې باور دئ، چي انسان وژنه د اخروي مسؤليتونو تر څنگ په مادي

---

المؤمنات. (أخرجه البخاری: ۱۰۱۷/۳، رقم: ۲٦۱۵، ومسلم: ۹۲/۱، رقم: ۸۹ ، و أبو داود: ۱۱۵/۳، رقم: ۲۸۷٤، والنسائی: ۲۵۷/٦، رقم :۳٦۷۱)

[۷] عن عمرو بن شرحبيل عن عبد الله قال: أتى رجل رسول الله ﷺ فسأله عن الكبائر، فقال: أن تدعو لله ندا وهو خلقك، وأن تقتل ولدك خشية أن يطعم معك، وأن تزاني حليلة جارك، ثم قرأ: "والذين لا يدعون مع الله إلها آخر ولا يقتلون النفس التي حرم الله إلا بالحق ولا يزنون ومن يفعل ذلك يلق أثاما". (أخرجاه في الصحيح من حديث الأعمش:۱۵۵۸۷. البيهقي في سننه الكبرى، ج: ۸، ص:۱۵، ح:۱۵٦۰۰)

لحاظ هم د ټولني د تخريب ستر لامل دئ، چې د انسانانو له منځ څخه مصؤنيت وړي او د سوکاله ژوند د خوند څخه يې بې برخي کوي.

# درېيمه لويه ګناه: سحر او جادو کول

د شرعي قانون له مخي سحر کول کبيره (لويه) ګناه ده او عقيده ورته ساتل کفر دئ. سحر کوونکي ته پر اسلام پاتېدل ګران کار دئ، ځکه الله جَلَّ جَلَالُهُ سحر کول ييخي کفر بللی دئ او فرمايي:

﴿وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَٰنُ وَلَٰكِنَّ الشَّيَٰطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ﴾ [البقرة، الاية: ١٠٢]

ژباړه: سليمان عَلَيْهِ السَّلَامُ کفر نه دئ کړی، شيطانانو کفر وکړ خلګو ته يې سحر ورښووئ.

د دې ناوړه عمل په اړه جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه روايت کوي چې فرمايي: د سحر کوونکي سزا دا ده، چې سر يې په توره ووهل سي.[(٨)]

حضرت بجاله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي: موږ ته د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تر مړيني يو کال وړاندي يو مکتوب راغلئ، په مکتوب کي ليکلي وه چې هر سحر کوونکی نارينه او ښځه ووژنئ.[(٩)]

---

[(٨)] عَنْ جُنْدُبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم: حَدُّ السَّاحِرِ ضَرْبُهُ بِالسَّيْفِ. (أخرجه الترمذى: ٦٠/٤، رقم: ١٤٦٠، و قال: هذا حديث لا نعرفه مرفوعًا إلا من هذا الوجه و يروى عن الحسن أيضًا، والصحيح عن جندب موقوف. وأخرجه أيضًا الدارقطنى: ١١٤/٣، والحاكم: ٤٠١/٤، رقم: ٨٠٧٣، وقال: صحيح الإسناد. والبيهقى: ١٣٦/٨، رقم: ١٦٢٧٧)

[(٩)] حدثنا مسدد بن مسرهد ثنا سفيان عن عمرو بن دينار سمع بجالة يحدث عمرو بن أوس وأبا الشعثاء، قال: كنت كاتبا لجزء بن معاوية عم الأحنف بن قيس إذ جاءنا كتاب عمر قبل موته بسنة، "اقتلوا كل ساحر، وفرقوا بين كل ذي محرم من المجوس، وانهوهم عن الزمزمة"، فقتلنا في يوم ثلاثة سواحر، وفرقنا

د حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه څخه روايت دئ، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: درې کسان الله جل جلاله جنت ته نه داخلوي:

١. شراب چيښونکی.
٢. د وصيلې پرې کوونکی.
٣. د سحر تصديق کوونکی.[10]

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: څوک که يو نجومي (کوډګر) ته ورغلئ او يو شی يې ترې وپوښتئ، څلوېښت شپې يې لمونځ نه قبلېږي.[11]

يعني که يو څوک کوډګر ته ددې لپاره ورغلئ چې يو پټ حال ځني وپوښتي، د دغه کس څلوېښت شپې لمونځ نه قبلېږي لکه زموږ په ټولنه کي ځيني خلګ داسي کوي، چې د يو چا يو شی ورک سي نو خلګ مشورې ورکوي او ورته وايي، چې ورسه کتنه وکړه. بيا نو دی يو کوډګر ته ولاړسي هغه د درواغو يو لوی داستان ورته جوړ کړي او خپلې پيسې ځني واخلي. څوک چې داسي وکړي يو لوی تاوان خو به يې دا وي، چې څلوېښت شپې به يې لمونځ نه قبلېږي. دوهم تاوان به يې دا وي، چې کوډګر به پيسې ځني اخيستي وي. درېيم دا چې کوم غل چې دغه کوډګر وروښيي هغه به غل نه وي، ځکه کوډګر هيڅکله په غيبو خبر نه دئ، نو په پايله کي به د هغه سره په شر لوېدلی وي.

---

بين كل رجل من المجوس وحريمه في كتاب الله، وصنع طعاما كثيرا فدعاهم فعرض السيف على فخذه فأكلوا ولم يزمزموا وألقوا وقر بغل أو بغلين من الورق، و لم يكن عمر أخذ الجزية من المجوس حتى شهد عبد الرحمن بن عوف أن رسول الله صلى الله عليه وسلم أخذها من مجوس. (هجر:٣٠٤٣. أبي داود في سننه، ج: ٣، ص: ١٦٨ ، ح:٣٠٤٣)

[10] ثلاثة لا يدخلون الجنة مدمن الخمر وقاطع الرحم ومُصَدِّق بالسحر ومن مات وهو مدمن للخمر سقاه الله من نهر الغوطة نهر يجرى من فروج المومسات يؤذى أهل النار ريح فروجهم أخرجه أحمد (٣٩٩/٤ ، رقم ١٩٥٨٧) ، والطبرانى كما فى مجمع الزوائد (٧٤/٥) قال الهيثمى : رواه أحمد وأبو يعلى والطبرانى ورجال أحمد وأبى يعلى ثقات . والحاكم (١٦٣/٤ ، رقم ٧٢٣٤) وقال : صحيح الإسناد .

[11] من اتى عرافا فسأله عن شيئ لم تقبل له صلوة اربعين ليلة. مسلم \ الصحيح \ ١٧٥١١٤١ \ ح ٢٢٣٠ .

په يوه بل روايت کې حضرت ابو هريرةﷺ د رسول اللهﷺ څخه روايت کوي، چې رسول اللهﷺ وفرمايل : څوک چې د کوډګر خبره رښتيا وبولي کافر کېږي.[۱۲]

يعني يو څوک کاهن ته ورسي (کاهن هغه کس بولي چې وايي: زه پټې معلوموم) او کاهن خپلې درواغجنې خبرې ورته وکړي، دغه ورغلی کس يې رښتيا وبولي کافر دئ، همدا د رسول اللهﷺ مبارک ارشاد دئ. نو د هغه چا پر حال بيخي افسوس دئ چې کاهنانو ته ورځي فالونه په ګوري او بيا يې ورته طمعه هم وي چې د دغه کاهن خبرې حتما منځته راځي. ځيني خو لا داسي هم سته چې دغه کار يو نېک کار هم بولي.

د حضرت عمران بن حصينﷺ څخه روايت دئ، چې نبي کريمﷺ وفرمايل: هغه څوک زموږ څخه نه دئ چې بدفالي کوي او يا د ده لپاره بدفالي کېږي، (همدا ډول هغه څوک زموږ څخه نه دئ) چې غيب معلوموي يا سحر کوي او يا د ده لپاره سحر او غيب معلومېدل کېږي. کوم څوک چې کاهن ته ورسي او بيا يې خبرې رښتيا وبولي د شک پرته دغه کس په هغه څه سره کافر سو کوم چې پر محمدﷺ باندي نازل سوی دئ.

د مسلمانانو له ډلي څخه که څوک کوډو ته ملا وتړي يا څوک ورسي رسول اللهﷺ د خپلې ډلي څخه ايستلی. اوس بدبختي دا ده، چې ځيني خلګ و اسلام ته بيخي توجه نه کوي؛ سيکانو او هندوانو ته ورځي په هغوی تعويذونه او بيا يې ستاينه هم کوي، دداسي چا به نو څه حال وي؟ پر داسي خلګو باندي د کفر سخته بېره ده. که دغه سلسله

---

۱۲ : من آتیٰ کاهنا فصدقه بمايقول فقد کفر بما انزل علي محمدﷺ ابوداود ۲۲۵\۴ \ ح ۳۹۰ ، ترمذي ۴۱۸\۱۱ \ ح ۱۳۵ ، وابن ماجة ۱۱۷\۱۱ \ ح ٦۳۴

داغسي روانه وي ډېر خلگ به د گمراهۍ و خوا ته ولاړسي او بيا ډېر د دې امکان سته چي د الله جل جلاله عذاب به راسي هغه سم خلگ به له دې امله ورسره په عذاب اخته وي، چي هغه گمراهان يې د ناروا کارونو څخه نه منعه کول، ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي :

کوم سړی چي د الله جل جلاله حدود بر پايه کوي او کوم سړی چي د الله جل جلاله حدود نه بر پايه کوي داسي مثال لري لکه يو قوم چي په يوه کښتۍ کي سپاره وي، يوه ډله يې په لوړ منزل کي وي او يوه ډله يې په کښته منزل کي وي او د منزلونو ټاکل د قرعه کشۍ (هسکي) له مخي سوي وي، لانديني خلگ د اوبو اړتيا د لوړي خوا پوره کوي نو لاندي خلگ ووايي: موږ به لاندي يوه ټوټه ماته کړو لوړ خلگ به د تکليف څخه خلاص سي، موږ به خپله د اوبو اړتيا دلته لاندي پوره کوو. اوس نو که لوړو خلگو لاندي خلگ منع نه کړل دواړه به هلاک سي او که يې بند کړل دواړه به نجات پيدا کړي.

اصحابو رضي الله عنهم د نبي کريم ﷺ څخه وپوښتل: آيا موږ په داسي حالت کي هم تباه کېږو چي په موږ کي نېکان او متقيان موجود وي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هو! که فسق او گناهونه غالب سول.(١٣)

د پورتنيو حديثونو څخه په څرگند ډول معلومېږي چي ساحرانو او جادوگرانو ته ورتلل، د هغوی څخه معلومات کول او د هغوی د جواب تصديق کول سخت منع دئ او په اړه يې سخت وعيدونه راغلي دي، نو ځکه د ديني چارو مسؤلينو او واکمنانو ته پکار ده چي خلگ د دغو جادوگرانو او ساحرانو څخه رامنع کړي، د بازارونو او نورو د بوختيا د ځايونو څخه يې منع کړي.

---

(١) رواه البخاري والترمذي.

ځرنګه چې د دغو جادوګرانو او ساحرانو ځیني خبري صحیح وخېژي نو ځکه په زیاته پیمانه خلګ ورته راځي او د ده په دغه ځینو خبرو باندي دوکه کېږي. اصلا وجه دا ده، چي کوم څوک چي دغه جادوګر ته راځي هغه یو ناخبره څوک وي په دې خبر نه وي، چي جادوګر ته ورتلل لویه ګناه ده او الله جل جلاله یې سخته منعه کړې ده. دغه کس باید پوه سي چي الله جل جلاله هیڅکله پر خپل بنده باندي داسي کار نه منعه کوي، چي په هغه کي ګټه وي. ځرنګه چي په دغه سحر او جادو کي لوی – لوی خطرونه او تاوانونه دي، نو ځکه یې الله جل جلاله منعه فرمایلې ده. د الله جل جلاله د منعه کولو وروسته باید هر مسلمان د دغه ناروا کار څخه منع سي، د دغو درواغجنو، فاجرانو، جادوګرانو او کوډګرانو په خبرو دي باور نه کوي، ځکه پورتني حدیثونه د دغه ساحرانو او جادوګرانو پر کفر باندي ښکاره ثبوتونه دي.

بله خبره لادا ده، چي یو خو رسول الله صلی الله علیه وسلم دوی کافران بللي دي، بل دوی هم په ښکاره د کفر کارونه کوي؛ هغه دا چي غیب وایي، حال دا چي په غیبو یوازي الله جل جلاله خبر دئ بل څوک چي یې دعوه وکړي هغه کافر دئ. د دې تر څنګ د پیرانانو پرستش کوي، هغوی استحضار وي، د الله جل جلاله پرته مرسته ترې غواړي، دا هم د کفر عمل دئ، خو لکه څرنګه چي ساحرانو او کوډګران کافران بلل سوي دي په دغه ډول هغه خلګ هم د دوی په ډول دي چي دوی ته ورځي او د دوی خبري رښتیا بولي یعني هغوی په دې رښتیا بللو سره کافران ګرځي، نو بیا د کوډګرانو او د هغو خلګو هیڅ فرق نه سته چي دوی ته ورځي.

هر څوک چي د دغه ناروا خلګو څخه د دغه ناروا یعني کوډګری زده کړه کوي، هغه د الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ذمې څخه وتلی دئ.

هیڅ مسلمان ته جائز نه ده چي په دغه کوډګرانو باندي د خپلي ناروغۍ معالجه وکړي، مثلا: دجادوګرانو په ځینو ناروا تعویذو سره یا په لیکو راګرځولو سره عمل ونه کړي او نه د دې ناروا لاري څخه د خپلي ناروغۍ درملنه وکړي، ځکه دا ټول د جادوګرانو خرافات او جعلکاري ده هیڅ شی یې حقیقت نه لري.

پاته دي نه وي چي هغه تعویذ جائز دئ کوم چي د جادوګرانو نه وي، سحر او منتر نه وي، بلکي قرآني آیتونه وي، ځکه په یوه روایت کي راغلي دي:

و عن عوف بن مالک رضی الله عنه قال:کنا نرقی فی الجاهلیة، فقلنا: یارسول الله صلی الله علیه وسلم! کیف تری فی ذلک؟ فقال: اعرضوا علی رقاکم لاباس بالرقی مالم یکن فیه شرک.[۱۴]

ژباړه: حضرت عوف بن مالک رضی الله عنه فرمایي: موږ د جاهلیت په زمانه کي دمونه او تعویذونه کول موږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وپوښتل: ته زموږ په تعویذو کي څه حکم کوې؟ پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل: تاسو خپل تعویذونه و ماته وړاندی کړئ هغه تعویذونه جائز دي چي په هغه کي د شرک الفاظ نه وي.

همدا ډول د یوه شرعي تعویذ په غاړه کول هم جائز کار دئ، ځکه علماء لیکي:

و لاباس بتعلیق التعویذ ولکن ینزعه عند الخلاء والقربان.[۱۵]

ژباړه: تعویذ ځړول پروا نه کوي مګر د قضاء حاجت او نژدېکت په وخت کیي به یې لیري کوي.

---

[۱۴] مسلم، ح: ۵۸۶۲. و ابو داؤد، ح: ۳۷۷۶.

[۱۵] عالمګیري، ج: ۵، صـ: ۵۵۶.

کوم څوک چي د دغه جادوگرانو په خبرو راضي او خوښ وي هغه هم د کفر او گمراهۍ مرستیال ثابتېږي، ځکه مسلمانانو ته هیڅکله روا نه ده، چي کاهنانو او جادوگرانو ته ولاړسي چي د ناروغۍ پرته دي نور کارونه په وکړي، لکه دا چي یو څوک کوډگر ته ورځي او ورته وایي: ما ته داسي تعویذ راوکړه چي زما د یوه دوست واده د بل سره وسي، یا د مېړه او مېرمني ترمنځ محبت راسي، یا د کورنۍ ترمنځ محبت، وفا او عداوت راسي، دا ټول شیان په غیبو پوري اړه لري د الله جل جلاله پرته هیڅوک د دې لاره نه لري چي په دې کي خبري وکړي او کار پکښي ولري.

په اوس وخت کي خورا ډېري ښځي تعویذگرانو ته ورځي چي داسي تعویذونه په وکړي چي د مېړه یې ورسره محبت سي، داسي کار سخت حرام دئ، ځکه فقهاء کرام لیکي:

ان ارادت امرأة ان تضع التعویذ لیحبها زوجها بعد ماکان یبغضه ذکر في الجامع الصغیر ذلک حرام.(١٦)

ژباړه: که چیري اراده وکړه ښځي چي و خپل خاوند ته تعویذ کښېږدي د دې لپاره چي ځان ورته محبوب کړي وروسته تر دې چي هغه بده گڼلې وي، حرام دئ.

## څلورمه لویه گناه: لمونځ نه کول

بې له عذره یعني په قصدي توگه لمونځ پرېښودلستره گناه ده، ځکه د دې گناه کوونکي ته په آیتونو او حدیثونو کي ډېر عذابونه بیان سوي دي.

(١٦) عالمگیري، ج: ٥، صـ: ٥٥٩.

الله جل جلاله فرمايي:

﴿فَخَلَفَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ خَلۡفٌ أَضَاعُوا الصَّلَوٰةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوٰتِ فَسَوۡفَ يَلۡقَوۡنَ غَيًّا ۝٥٩ إِلَّا مَن تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا فَأُوْلَٰٓئِكَ يَدۡخُلُونَ الۡجَنَّةَ وَلَا يُظۡلَمُونَ شَيۡـًٔا ۝٦٠﴾[17]

ژباړه: بيا تر دوی وروسته داسي کسان پيدا سوه چي لمونځ يې نه کاوه او د خپلو خواهشاتو تابع اوسېدل، ژر به دغه کسان د ډېرو بدو پايلو سره مخ سي، مګر نه هغه څوک چي توبه وباسي، ايمان راوړي او نېک عمل وکړي، دغه کسان به نو جنت ته ځي او لږ غوندي ظلم به هم ورباندي نه کېږي.

په دې آيت کريمه کي الله جل جلاله د تېرو کسانو د بيان په تعقيب د هغه کسانو بيان وکړئ چي لمونځ نه کوي او د خپل نفس د غوښتنو تابع وي، دوی به بدي پايلي ووېني يعني الله جل جلاله به عذاب ورکړي.

د لمانځه نه کوونکی په اړه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمايي:

تاسو لمونځ مه پرېږدئ، څوک چي په قصدي ډول لمونځ پرېږدي د الله جل جلاله د ذمې څخه ووتئ.[18]

څوک چي د الله جل جلاله په ذمه کي نه وي هغه کس د دنيا او آخرت د تکليفونو څخه ځان نه سي ساتلای.

---

[17] سورة مريم، الايتان: ٥٩، ٦٠.

[18] لا تتركن الصلاة متعمدا فإنه من ترك الصلاة متعمدا فقد برئت منه ذمة الله و رسوله. (أحمد عن أم أيمن. أخرجه أحمد: ٤٢١/٦، رقم: ٢٧٤٠٤، قال الهيثمى: ٢٩٥/١ رجاله رجال الصحيح إلا أن مكحولا لم يسمع من أم أيمن.

لمونځ چې تر ډېرو عملونو ښه عبادت دئ او د الله ﷻ رضا پکښې نغښتې ده ځکه نو د قيامت په ورځ چې حساب پيل سي الله جل جلاله لومړی د لمانځه پوښتنه کوي، ځکه رسول ﷺ فرمايي:

لومړی شی چې د بنده سره يې د قيامت په ورځ حساب کېږی لمونځ دئ، د چا چې لمونځ صحيح وي خلاص او کامياب به وي، د چا چې لمونځ نيمگړی وي خاوري په سر اوتاواني به وي. (١٩)

په بل ځای کي رسول ﷺ لمونځ پرېښوونکی د توري او ويني تويوني څخه خلاص نه دئ بللی، بلکي د هغه په قتل يې امر کړی دئ او داسي فرمايي: زه په دې امر سوی يم چې تر هغه به د خلگو سره جنگېږم تر څو خلگ د "لااله الاالله" کلمه وايي، لمونځ کوي او زکات ورکوي. کله چې دوی دغه کارونه وکړل نو زما څخه يېويني او مالونه په امن دي مگر په حق سره او حساب يې پر الله ﷻ دئ. (٢٠)

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل: پنځه لمونځونه دي څوک چې يې حفاظت کوي لمونځ به د ده لپاره د قيامت په ورځ نور او دليل وي او هم به د ده لپاره د دوږخ څخه خلاصون وي. څوک چې د لمانځه حفاظت نه کوي د قيامت په ورځ به د ده لپاره نه نور او نه دليل او نه به

---

(١٩) وعن أبي هريرة رضي الله عنه قَالَ: قال رَسُول الله ﷺ: إِنَّ أَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ بِهِ العَبْدُ يَوْمَ القِيَامَةِ مِنْ عَمَلِهِ صَلاَتُهُ، فَإِنْ صَلَحَتْ، فَقَدْ أَفْلَحَ وأَنْجَحَ، وَإِنْ فَسَدَتْ، فَقَدْ خَابَ وَخَسِرَ. (أخرجه الترمذي: ٤١٣، والنسائي: ٢٣٢/١، وفي "الكبرى" له: ٣٢٥ . قال الترمذي : حديث حسن غريب.

(٢٠) أمرت أن أقاتل الناس حتى يشهدوا أن لا إله إلا الله وأنى رسول الله، ويقيموا الصلاة، ويؤتوا الزكاة، فإذا فعلوا ذلك عصموا منى دماءهم وأموالهم إلا بحق الإسلام وحسابهم على الله. (أخرجه ابن حبان: ٤٠١/١، رقم: ١٧٥)

هم د ده د دوزخ څخه خلاصون وي، بلکي د فرعون، قارون، هامان، او اُبی بن خلف سره به په دوزخ کي وي.[21]

پاته دي نه وي د لمانځه د پرېښودلو په اړه خورا زيات احاديث راغلي دي، چي د ټولو رانقلول ګران کار دئ آن تر دې چي رسول الله ﷺ لمونځ د کافر او مسلمان ترمنځ فرق ښوولی دئ او ځيني ځايونه رسول الله ﷺ کافر ورته ويلي که څه په لمانځه پرېښوولو څوک نه کافر کيږي مګر دومره ستره ګناه ده لکه کفر. (اللهم اجرنا منه)

# پنځمه لويه ګناه: زکات نه ورکول

زکات نه ورکول چي کوونکی يې الله جل جلاله ته ډېر ناخوښه دئ او په شان کي يې ډېر سخت عذابونه وعده کړي دي له جملې څخه يې يو لاندي مبارک ارشاد دئ چي فرمايي:

﴿وَالَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿٣٤﴾ يَّوْمَ يُحْمٰى عَلَيْهَا فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوٰى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوْبُهُمْ وَظُهُوْرُهُمْ هٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِاَنْفُسِكُمْ فَذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُوْنَ ﴿٣٥﴾﴾ [سورة التوبة، الايتان: ٣٤، ٣٥]

ژباړه: هغه کسان چي سره او سپين زر خزانه کوي او د الله جل جلاله په لار کي يې نه خرڅوي، اې محمده ﷺ! دغو کسانو ته په سخت

---

[21] خمس صلوات من حافظ عليهن كانت له نورًا وبرهانًا ونجاة يوم القيامة، ومن لم يحافظ عليهن لم يكن له نور يوم القيامة ولا برهان ولا نجاة وكان يوم القيامة مع فرعون وقارون وهامان وأبی بن خلف. (أخرجه محمد بن نصر فی تعظيم قدر الصلاة: ١٣٣/١)

عذاب سره زېرى ورکړه. هغه ورځ د يادولو وړه ده چي د دوى جمع کړي مالونه په اور سخت تاوده سي بيا تندي، بغلونه او ملاوي يې په و داغل سي او ورته وويل سي: دا هغه مالونه دي چي د خپلو ځانونو لپاره مو جمع کړي وه اوس نو د هغو مالونو عذاب وڅکئ چي تاسو خزانه کړي وه.

مال او شتمني چي د الله جل جلاله ورکړه ده چا ته چي يې خوښه سي هغه ته مال ورکوي او چا ته چي يې خوښه سي مال ځني اخلي، نو د الله جل جلاله په ورکړه کي د الله جل جلاله امرونه پلي کول لازمي دي، چي لو مړى يې زکات ورکول دي که مخالفت وکړي د الله جل جلاله څخه هيڅوک نه سي خلاصېداى او عذابونه يې ډېر سخت دي، ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: اول هغه درې (۳) کسان چي الله جل جلاله يې دوږخ ته اچوي: يو ظالم آمر دئ، دوهم د مال څښتن دئ چي د الله جل جلاله حق يعني زکات نه ځني ورکوي، درېيم کبرجن مسکين دئ.[۲۲]

په بل ځاى کي رسول صلی الله علیه وسلم د زکات نه ورکوونکي ته د سخت مار چيچلو وعده ورکړې ده او فرمايلي يې دي: څوک چي د مال څښتن سي او زکات يې ور نه کړي د ده مال به د قيامت په ورځ د يوه لوى مار په شکل واوړي، چي په سر پک وي، دوې کوڅۍ به لري، پر ده باندي به راوپېچل سي په خپلو زامو سره به يې وچيچي، بيا به دا مار ورته ووايي: زه ستا مال يم، زه ستا خزانه يم. بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله

---

(۲۲) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صلی الله علیه وسلم: عُرِضَ عَلَيَّ أَوَّلُ ثَلاَثَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ، وَأَوَّلُ ثَلاَثَةٍ يَدْخُلُونَ النَّارَ، فَأَمَّا أَوَّلُ ثَلاَثَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ: فَالشَّهِيدُ، وَعَبْدٌ أَدَّى حَقَّ الله عَزَّ وَجَلَّ وَنَصَحَ لِسَيِّدِهِ، وَفَقِيرٌ مُتَعَفِّفٌ ذُو عِيَالٍ، وَأَمَّا أَوَّلُ ثَلاَثَةٍ يَدْخُلُونَ النَّارَ: فَسُلْطَانٌ مُتَسَلِّطٌ، وَذُو ثَرْوَةٍ مِنَ الْمَالِ لَمْ يُؤَدِّ حَقَّ مَالِهِ، وَفَقِيرٌ فَخُورٌ. (أخرجه أحمد: ۴۲۵/۲، رقم: ۹۴۸۸، وابن أبى شيبة: ۲۶۸/۷، رقم: ۳۵۹۶۹، والحاكم: ۵۴۴/۱، رقم: ۱۴۲۹، والبيهقى: ۸۲/۴، رقم: ۷۰۱۹. وأخرجه أيضًا ابن المبارك فى الجهاد، ص: ۵۱، رقم: ۴۶، وابن خزيمة: ۸/۴، رقم: ۲۲۴۹)

دا قول تلاوت کړ چي مفهوم يې دئ: کومو کسانو ته چي الله جل جلاله د خپله فضله مال ورکړی دئ او دی بخل کوي، دا ګومان دي نه کوي چي دا مال به د دوی لپاره خير وي، بلکي دا مال د دوی لپاره شر دئ، ژر دئ چي هغه مال کوم چي دوی بخل په کاوه د قيامت په ورځ به د دوی د غاړي طوق سي.[23]

## شپږمه لويه ګناه: بې له عذره روژه خوړل

د روژې خوراک چي بې له عذره وي لويه ګناه ده، ځکه د اسلام د پنځو بناوو څخه يوه مهمه بناء ده، الله جل جلاله يې په فرضيت سره امر کړی دئ او فرمايي:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُتِبَ عَلَيْكُمُ ٱلصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿١٨٣﴾﴾ [سورة البقرة، الاية: ١٨٣]

---

(٢٣) قوله: ما من رجل لا يؤدي زكاة ماله إلا جعل الله يوم القيامة في عنقه شجاعاً، هذا لفظ الترمذي، وللنسائي: ما من رجل له مال لا يؤدي حق ماله إلا جعل له طوقاً في عنقه، شجاع أقرع وهو يفر منه وهو يتبعه، ولفظ ابن ماجه: من أحد لا يؤدي زكاة ماله إلا مثل له يوم القيامة شجاعاً أقرع حتى يطوق به عنقه، وأخرجه أحمد بلفظ: لا يمنع عبد زكاة ماله إلا جعل له شجاع أقرع يتبعه يفر منه وهو يتبعه فيقول أنا كنزك، (ثم قرأ) أي رسول الله ﷺ كما في رواية ابن ماجه (علينا مصداقة) أي ما يصدقه ويوافقه (من كتاب الله) الظاهر أنه حال من مصداقة أو من بيان له وما بعده بدل بعض من الكل "ولا يحسبن الذين يبخلون بما آتاهم الله من فضله " الآية في الترمذي بعده، وقال مرة رسول الله ﷺمصداقة : "سيطوقون ما بخلوا به يوم القيامة " [آل عمران: ١٨٠] (رواه الترمذي في التفسير واللفظ له، والنسائي وابن ماجه في الزكاة، وأخرجه أيضا أحمد، ج:١، ص: ٣٧٧، والبيهقي: ج:٤، ص:٨١، وقال الترمذي: هذا حديث حسن صحيح. وقال المنذري في الترغيب: بعد إيراده رواه ابن ماجه والنسائي بإسناد صحيح وابن خزيمة في صحيحه - انتهى. وأخرجه الحاكم في التفسير، ج:٢، ص: ٢٩٨، ٢٩٩، وابن جرير عن ابن مسعود موقوفاً. مشكاة المصابيح مع شرحه مرعاة المفاتيح)

ژباړه: اې هغه مؤمنانو! پر تاسو روژه فرض ده لکه چې فرض سوې وه پر هغو کسانو باندي کوم چې تر تاسو مخکي وه، د دې لپاره چې تاسو د الله جل جلاله څخه وبېرېږئ.

همدا ډول رسول الله ﷺ فرمايلي دي: اسلام پر پنځو (۵) بناوو ولاړ دئ:

۱. شاهدي ورکول چې الله جل جلاله يو دئ بل معبود (يعني لايق د عبادت) نه سته او محمد ﷺ د الله جل جلاله رسول دئ.
۲. لمونځ کول.
۳. زکات ورکول.
۴. حج کول.
۵. د روژې د مياشتي روژه نيول. [۲۴]

د حضرت کعب بن عجرة رضي الله عنه څخه روايت دئ، چې يو ځلي رسول الله ﷺ وفرمايل: منبر ته را نژدې سئ! موږ هم ټول منبر ته رانژدې سو. کله چې رسول الله ﷺ د منبر پر لومړۍ زينه باندي قدم کښېښووئ و يې فرمايل: آمين! کله چې يې پر دوهمه زينه باندي قدم مبارک کښېښووئ بيا يې وفرمايل: آمين! او کله چې يې پر درېيمه زينه باندي قدم کښېښووئ بيا يې وفرمايل: آمين! کله چې رسول الله ﷺ د خطبې څخه فارغ سو او لاندي راکښته سو موږ پوښتنه وکړه: اې د الله جل جلاله رسوله ﷺ! موږ نن ستا څخه داسي خبري واورېدلې چې مخکي مو ستا څخه نه وې اورېدلي.

---

[٢٤] عن أبي عبدالرحمن عبدالله بن عمر بن الخطاب رضي الله عنهما قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: بني الإسلام على خمس؛ شهادة أن لا إله إلا الله وأن محمدًا رسول الله، وإقام الصلاة، وإيتاء الزكاة، وحج البيت، وصوم رمضان. (أخرجه أحمد: ٣٦٣/٤، رقم: ١٩٢٤٠، وأبويعلى : ٤٨٩/١٣، رقم: ٧٥٠٢، والطبراني: ٣٢٦/٢، رقم: ٢٣٦٣. وأخرجه أيضًا الطبراني فى الصغير: ٦٠/٢، رقم: ٧٨٢)

رسول اللهﷺ وفرمایل: هغه وخت جبرئیلعلیه السلام زما مخته راغلئ چې ما د منبر پر لومړۍ زینه باندې قدم کښېښووئ دستې یې راته وفرمایل: د الله تعالی د رحمت څخه دې هغه څوک لیرې وي چې د روژې د میاشتې روژه د شریعت سره سمه ونیسي بیا هم د هغه گناهونه و نه بخښل سي، رسول اللهﷺ فرمایي: ما وویل: آمین! (یعني د جبرئیلعلیه السلام پر دغه ښرا باندې مې آمین وویه، چې اې اللهجل جلاله! دا ښرا قبوله کړې). وروسته رسول اللهﷺ زیاته کړه چې جبرئیلعلیه السلام هغه چا ته ښرا وکړه، چې څوک زما نوم واوري او درود نه ووایي، همدا ډول یې هغه چا ته ښرا وکړه، چې مور او پلار څني راضي نه وي او ما هم آمین ورباندې وو ایه.[۲۵]

د حضرت ابوهریرةرضي الله عنه څخه روایت دئ، چې رسول اللهﷺ وفرمایل: که څوک د روژې د میاشتې یوه روژه د شرعي عذر یا ناروغۍ پرته نه ونیسي، د ټول عمر روژه نیول به د هغې یوې روژې ځای و نه نیسي که څه هم ټول عمر روژه ونیسي.[۲۶]

د حضرت ابو امامة باهليرضي الله عنه څخه روایت دئ، دی مبارک فرمایي: ما د رسول اللهﷺ څخه واورېدل چې ده مبارک وفرمایل: زه بیده وم چې دوه خلګ راغلل او زه یې تر بغلو ونیولم او یوه داسې غره ته یې راوستلم چې تګ پکښې ډېر تکلیفي وو، بیا یې راته وویل: وخیژه! ما ورته وویل: زما په وسه نه دي پوره. دوی راته وویل: موږ

---

[۲۵] و عن کعب بن عجرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: احضروا المنبر، فحضرنا، فلما ارتقی درجة قال: آمین! فلما ارتقی الدرجة الثانیة قال: آمین! فلما ارتقی الدرجة الثالثة قال: آمین! فلما نزل قلنا یا رسول الله ﷺ! لقد سمعنا منک الیوم شیئا ما کنا نسمعه، قال: ان جبریل علیه السلام عرض لی، فقال: بعد من ادرک رمضان فلم یغفر له قلت: آمین ... الی اخیر الحدیث. (رواه الحاکم، الترغیب والترهیب، ص: ۹۲، ج:۲)

[۲۶] من افطر یوما في رمضان من غیر رخصة ولا مرض لم یقض عنه صوم الدهر کله و ان صامه. (مشکوة، ص:۱۷۷، ج:۱)

کومک درسره کوو نو زه هم راوختلم څو چې د غره منځ ته ورسېدلم ناڅاپه مي ډېر سخت آوازونه واورېدل، پوښتنه مي وکړل چې دا څنګه آوازونه دی؟ دوی وویل: د دوږخیانو چیغي او نارې دي. د دې وروسته يې بوتلم څو چې يو ډله مي وليدل چې د پنډۍ او پښو ترمنځ د بجلکي شا ته په دغه پله ځړېدل او پښې يې ټينګې تړل سوي وې، د خولو کونجيان يې څيري او وينې ځيني بهېدلې، دی مبارک فرمايي: ما پوښتنه وکړل چې دا څوک دي؟ دوی وويل: دا هغه خلګ دي چې د روژه مات وخت به نه وو داخل دوی به روژې ماتولې.[27] يعني روژه خوړونکي انسانان وه.

# اوومه لويه ګناه: د توان لرلو سره حج نه کول

د اسلام د بناوو څخه يوه مهمه بناء حج دئ، فرضيت يې په آيتونو او حديثونو سره ثابت سوی دئ او پرېښودل يې لويه ګناه ده په داسي حال کي چې نوموړی سړی شتمن وي يعني د تلو او راتلو خرڅ په لاس کي ولري، ځکه الله جل جلاله فرمايي:

﴿وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾[28]

ژباړه: د الله جل جلاله لپاره پر خلګو باندي د بيت الله شريفي حج کول (لازم دئ، البته د) هغه چا لپاره چې د لاري طاقت ولري يعني د تلو او راتلو مصرف ولري.

رسول اکرم صلى الله عليه وسلم د حج کولو پر اهميت ډېر ټينګار کړی دئ، ځکه ابي امامة باهلي رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه روايت کوي چې فرمايي:

(27) مشکوة، ص: ۱۷۷، ج: ۱.

(28) سورة آل عمران، الاية: ۹۷.

ځوک چي د لاري د وسائلو مالک سي او حج ته د تللو مصرف ولري خو حج و نه کړي، نو پروا نه سته که يهودي مړ سي او که نصراني مړ سي.[۲۹]

يعني دا چي په حج تللو سره خو سړی نه کافر کېږي خو د توان سره يې نه کول دومره لويه گناه ده، چي امکان د دې سته چي د حج نه کول پر ده باندي دومره اثر وغورځوي چي بيخي يهودي يا هم نصراني سي.

د حضرت عمر فاروقؓ په خلافت کي نوموړي د حج د ډېر زيات اهميت له کبله پر پرېښوونکي باندي د اسلام څخه د وتلو پرېکړه کړې ده، داسی يې فرمايلي دي: ما قصد کړی دئ چي خلگ به دې ښارونو ته استوم هر چا چي د حج کولو توان درلودئ او حج يې نه وو کړی، نو ججه (جزيه) دي پر حواله سي دا مسلمانان نه دي.[۳۰]

يعني کافران چي پر خپل دين پاته وي او په اسلامي هيواد کي اوسېږي اسلامي حکومت ته به ججه ورکوي، عمر فاروقؓ هغه کسان چي د توان سره حج نه کوي د کافرانو په شان کړي دي، ځکه د اسلام يو مهم رکن يې نه دئ پر ځای کړی، خو ځوک دي دا فکر نه کوي چي د حج پرېښوونکی کافر دئ البته عمرؓ له دې امله دا پرېکړه کړې ده چي خلک وبېرېږي او پوه سي چي دا گناه ډېره لويه ده.

---

[۲۹] من ملك زادا و راحلة تبلغه إلى بيت الله الحرام فلم يحج فلا عليه أن يموت يهوديا أو نصرانيا و ذلك أن الله يقول فی كتابه: ولله على الناس حج البيت من استطاع إليه سبيلا ومن كفر فإن الله غنى عن العالمين. [آل عمران: ۹۷] (أخرجه الترمذی: ۱۷٦/۳، رقم: ۸۱۲، وقال: غريب. وابن جرير: ۱٦/٤، والبيهقی فی شعب الإيمان: ٤۳۰/۳، رقم: ۳۹۷۸. وأخرجه أيضًا: البزار: ۸۷/۳، رقم: ۸٦۱)

[۳۰] عن عمر قال: لقد هممت أن أبعث رجالا إلى الأمصار فلا يدعون رجلا ذا ميسرة لم يحج إلا ضربوا عليه الجزية ما هم بمسلمين. (كنز العمال، ح: ۱۲٤۰۰)

# اتمه لويه ګناه: د مور او پلار ځورول

د انسان تر ټولو نازکه مرحله چې ماشومتوب دئ د حفاظت يوازنی سبب يې مور او پلار دي او د دوی مينه ده، چې غير د الله جل جلاله ځخه په بل چا کي نه سته، د دوی ربښتينې ساتنه داسي احسان دئ چي هيڅ انسان ته يې د احسان بدله ورکول ممکن نه دي، د دوی زهېربدل د هر اړخه لوی جرم دئ.

د مور او پلار د حقوقو اړونده الله جل جلاله فرمايي:

﴿وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ؕ اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُهُمَآ اَوْ كِلٰهُمَا فَلَا تَقُلْ لَّهُمَآ اُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُلْ لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيْمًا ﴿٢٣﴾ وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيٰنِيْ صَغِيْرًا ﴿٢٤﴾﴾ (٣١)

ژباړه: اې محمده صلی الله عليه وسلم! ستا رب فيصله کړې ده چي د الله جل جلاله پرته به د بل چا عبادت نه کوې او د مور او پلار سره به احسان کوې، که يو يې يا دواړه د سپين ږيروالي حالت ته ورسېږي "اُف" مه ورته وايه (يعني که ستړی يې د ستړيا پر مهال "اُف" لا د دوی مختته مه وايه چي فقط د خپلي ستړيا څرګندتيا په وسي نور د آزار خبري خو بيخي مه ورته کوه)، ښې خبری ورته کوه، د مهربانۍ او ځان ټيټ ښودلو په وجه خپل وزر ورته کښته کړه او ووايه: اې ربه! پر دوی رحم وکړه لکه دوی چي زه په ماشومتوب کي روزلی يم.

---

(٣١) سورة الاسراء، الايتان: ٢٣، ٢۴.

د دې څرگند حقیقت د ثبوت په موخه د اسلام سپېڅلي لارښود درې ځلې داسي ارشاد وفرمایه: آیا زه تاسو ترټولو په لویو گناهونو باندې خبر نه کړم؟ مبارکو اصحابانو وویل: بلې! خبر مو کړه یا رسول الله ﷺ! رسول الله ﷺ وفرمایل: (ترټولو لوی گناهونه) د الله جل جلاله سره شریک نیول دي، د مور او پلار آزار دئ. (۳۲)

په یو بل حدیث کي رسول الله ﷺ فرمایلي دي: جنت ته به چغلگر، د مور او پلار آزاري او د شرابو چیښونکی داخل نه سي. (۳۳)

څرنگه چې د مور او پلار آزار ډېر لوی جرم دئ له همدې امله الله جل جلاله د مور او پلار آزاري ته په دې دنیا کي هم عذاب ورکوي، ځکه رسول الله ﷺ فرمایی: د ټولو گناهونو عذاب الله جل جلاله د آخرت ورځي ته ځنډوي. چاته چي یې خوښه سي (هلته عذاب ورکوي او چا ته یيا معافي کوي که یې خوښه سوه)، مگر د مور او پلار آزاري ته الله جل جلاله ډېر ژر په ژوند کي تر مرگ مخکي عذاب ورکوي. (۳۴)

---

(۳۲) عن عبد الرحمن عن أبيه قال: قال رسول الله ﷺ: ألا أنبئكم بأكبر الكبائر -ثلاثاً-؟ قلنا: بلى! يا رسول الله! قال: الإشراك بالله، وعقوق الوالدين، وكان متكئاً فجلس، فقال: ألا وقول الزور، وشهادة الزور، فما زال يكررها حتى قلنا: ليته سكت! (البخارى: ٢٢٢٩/٥، رقم: ٥٦٣١، ومسلم: ٩١/١، رقم: ٨٧، والترمذى: ٣١٢/٤، رقم: ١٩٠١، وقال: حسن صحيح)

(۳۳) عن ابن عمر رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: لا يدخل الجنة منان، ولا عاق، ولا مدمن خمر. (أخرجه النسائى: ٣١٨/٨، رقم: ٥٦٧٢)

(٣٤) عن أبي بكرة رضي الله عنه قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: كل الذنوب يؤخر الله ما شاء منها إلى يوم القيامة إلا عقوق الوالدين فإن الله تعالى يعجله لصاحبه في الحياة قبل الممات. (هذا حديث صحيح الإسناد ولم يخرجاه الحاكم في مستدركه، ج: ٤، ص:١٧٣، ح:٧٢٦٣)

# نهمه لويه ګناه: د خپلوۍ او قرابت پرېکول

الله جل جلاله بشريت ته د ښه ژوند لپاره د حکمت څخه ډکي لارښووني کړي دي، چي يو د هغو څخه قرابت او خپلوي پالل دي. دا يوه داسي کړنه ده چي په واسطه يې د خلګو په منځ کي محبت، اتفاق او همږغي راځي چي د ټولني د پرمختګ لامل ګرځي.

قرابت او خپلوي پالل دا دئ، چي ستا ټول قريبان ته داسي وپالې، چي د ناروغۍ پر مهال ورباندي پوښتنه وکړې، که مسکين سي مالي کومک ورسره وکړې، که څوک ظلم ورباندي کوي د ظالم د لاس څخه يې وژغورې او که احتياج سي پيسې په قرض ورکړې.

دا خبره ياد ساتل پکار دي چي دا کارونه هر وخت کول لازمي دي يعني دا چي که قريبان ستا سره قرابت پالي او که يې نه پالي خو ته به يې پالې، دا فکر به نه کوې چي دوی که زما سره قرابت پالي زه يې پالم او که يې نه پالي زه به يې نه پالم. حاصل دا چي که قريبانو ستا سره قرابت نه پالئ تا هم ورسره پرېښودئ ګناهګار يې. څوک چي قرابت او خپلوي نه پالي کبيره ګناه ده، ځکه الله جل جلاله فرمايي:

﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا ①﴾[35]

ژباړه د هغه رب جل جلاله څخه وبېرېږئ چي د هغه په وسيله تاسو يو له بله خپل حقوق غواړئ او د خپلوۍ او قرابت د پرېکولو څخه ځانونه وساتئ، باور وکړئ چي الله جل جلاله ستاسو پوره څارونکی دئ.

---

[35] سورة النسآء، الاية: ١.

بل ځای الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي:

﴿يُضِلُّ بِهٖ كَثِيْرًا وَّيَهْدِىْ بِهٖ كَثِيْرًا ۭ وَمَا يُضِلُّ بِهٖٓ اِلَّا الْفٰسِقِيْنَ ۝٢٦ الَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ ۠ وَ يَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ وَيُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ ۭ اُولٰۗىِٕكَ ھُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝٢٧﴾[٣٦]

ژباړه: ډېر خلک په قرآن ګمراه کېږي او ډېر خلګ د قرآن له برکته پر هدايت کېږي، په قرآن باندي يوازي فاسقان ګمراهان کيږي. فاسقان هغه خلک دي چي تر ټينګي وعدې کولو وروسته په وعده وفا نه کوي، خپلوي او قرابت پرېکوي کوم چي الله جَلَّ جَلَالُهُ يې د پاللو امر کړی او فساد په مځکه کي کوي، دغه کسان په يقيني ډول تاوانيان دي.

الله جَلَّ جَلَالُهُ په دغه مبارک آيت کي د خپلوۍ او قرابت پرېکوونکي د فاسقانو له ډلي بللي دي او يقيني تاواني يې ورته ويلي دي.

سيدالبشر حضرت محمد ﷺ د دې مهمي خبري په اړه ډېر ټينګار کړی دئ، د قرابت پرېکوونکی او د خپلوۍ نه پالونکي ته يې د سخت عذاب وعده کړې ده او فرمايلي يې دي: هغه څوک به جنت ته ولاړ نه سي چي د قريبانو سره خپلوي او قرابت نه پالي.[٣٧]

---

[٣٦] سورة البقرة، الايتان: ٢٦، ٢٧.

[٣٧] عن جبير بن مطعم قال: قال رسول الله ﷺ: لا يدخل الجنة قاطع رحم. (أخرجه الطبرانى: ١١٨/٢، رقم: ١٥١٠، وأحمد: ٨٠/٤، رقم: ١٦٧٧٨، والبخارى: ٢٢٣١/٥، رقم: ٥٦٣٨، ومسلم: ١٩٨١/٤، رقم: ٢٥٥٦، والترمذى: ٣١٦/٤، رقم: ١٩٠٩، وقال: حسن صحيح . وابن حبان: ١٩٩/٢، رقم: ٤٥٤)

رسول الله ﷺ فرمايي: پر هغه قوم باندي د الله جل جلاله رحمت نه راځي چي په هغو كي داسي څوک وي چي قرابت او خپلوي نه پالي.[۳۸]

رسول الله ﷺ فرمايي: هره د جمعې شپه نېک اعمال الله جل جلاله ته وړاندي کېږي يوازي د هغه چا اعمال نه قبلېږي څوک چي قرابت او خپلوي نه پالي.[۳۹]

# لسمه لويه گناه: زنا كول

زنا كول ددنيا او آخرت د سختو تاوانو چينه ده، ځكه طب پوهانو ثابته كړې ده چي زنا كول د لاعلاجه ناروغيو لامل ده. همدا ډول د آخرت سخت عذابونه هم د زنا په وجه وعده سوي دي، ځكه الله جل جلاله فرمايي:

﴿وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰٓ إِنَّهُۥ كَانَ فَٰحِشَةً وَسَآءَ سَبِيلًا ﴿٣٢﴾﴾[۴۰]

ژباړه: زنا ته مه نژدې کېږئ باور وکړئ زنا بې حيايي ده او ډېره بده لار ده.

رسول الله ﷺ د دې كرغېړن او په تاوانونو لړلي كار په اړه ډېر عذابونه ښوولي دي، په يوه حديث كي راځي: سمره بن جندب رضي الله عنه

[۳۸] حدثنا عبيد الله بن موسى قال: أخبرنا سليمان أبو إدام قال: سمعت عبد الله بن أبى أوفى يقول عن النبي ﷺ قال: إن الرحمة لا تنزل على قوم فيهم قاطع رحم. (البخاري في الأدب المفرد، ج: ١، ص:٣٦، ح:٦٣)

[۳۹] عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: إن أعمال بنى آدم تعرض كل عشية خميس ليلة الجمعة فلا يقبل عمل قاطع رحم. (أخرجه البخارى فى الأدب المفرد: ٣٥/١، رقم:٦١، والبيهقى فى شعب الإيمان: ٢٢٤/٦، رقم: ٧٩٦٦)

[۴۰] سورة الاسراء، الاية: ٣٢.

فرمايلي دي: رسول الله ﷺ د خپل خوب قصه داسي بيانول: ما ته په خوب کښې جبرئيل علیه السلام او ميکائيل علیه السلام راغله يوځای ولاړو د تنور په څېر يو شی راته راغلئ د سر خوا يې تنگه او د پای خوا يې پراخه وه، په دې تنور کي چيغي اوناري وې موږ چي ورته وکتل لڅ نارينه او ښځي پکښې وه، د لاندي خوا به لمبې پر راتللې کوم وخت چی به لمبې باندي راغلې دوی به د ډېره زحمته لوی –لوی چيغي کړې.

رسول الله ﷺ فرمايي: ما د جبرئيل علیه السلام څخه پوښتنه وکړه چي دا څوک دي؟ جبرئيل علیه السلام راته وويل: دا زنا کوونکي نارينه او زنا کوونکي ښځي دي د قيامت تر ورځې پوري يې دغه عذاب دئ. [٤١]

په بل حديث کي رسول الله ﷺ داسي فرمايلي دي: څوک چي زنا وکړي يا شراب وچيښي، الله جل جلاله داسي ايمان ځنی کاږي لکه انسان چي قميص د خپله سره وکاږي. [٤٢]

## ( ۱۱ ) لويه گناه: لواطت کول

لواطت کول يعني د نارينه بې ږيري انسان سره انساني شهواني محبت کول او يا جنسي استفاده ځني کول داسي بد عمل دئ، چي انساني ظرافت اوسالم فکر ډېر ليري ځني پاتېږی ځکه د لوط علیه السلام قوم چي دا کار کاوه الله جل جلاله درې (۳) عذابونه باندي نازل کړل، چي داسي عذاب يې بل چا ته نه دئ ورکړی:

لومړی عذاب يې د جبرئيل علیه السلام چيغه وه، چي د ټولو ارواحان قبض سوه يعني په دې هيبتناک عذاب سره د ټولو زاړې وچاودې.

---

[٤١] رواه البخاری فی حديث طويل، وايضا الطبراني في معجمه الكبير، ج:٧، ص:٢٣٩، ح: ٦٩٨٤.

[٤٢] عن أبی هريرة قال: قال رسول الله ﷺ: من زنی أو شرب الخمر نزع الله منه الإيمان كما يخلع الإنسان القميص من رأسه. (أخرجه الحاكم: ٧٣/١، رقم ٥٧)

دوهم عذاب يې دا وو، چې مځکه چپه وړباندي وا وښته. دريم عذاب يې دا وو، چې د دوږخ ډبري باندي و ورېدې.

الله جل جلاله د دوی عذاب داسي بيانوي:

﴿فَلَمَّا جَآءَ اَمۡرُنَا جَعَلۡنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَاَمۡطَرۡنَا عَلَيۡهَا حِجَارَةً مِّنۡ سِجِّيۡلٍ ۙ مَّنۡضُوۡدٍ ۝﴾ (۴۳)

ژباړه: هر كله چي زموږ امر راغلئ نو كښته طرف مو د دې ښارونو لوړ وگرځاوه او د خټو جوړي سوي، په اور پخ سوي ډبري مو پر و ورولې (يعني ښار مو چپه واړوی او د دوږخ ډبري مو باندي و ورولې)

رسول الله ﷺ د لواطت پر كوونكي باندی د مرگ امر كړی دئ او فرمايي: كه تاسو يو څوك پيدا كړئ چي د لوط عليه السلام د قوم كار يې كاوه يعني لواطت يې كاوه، نو لواطت كوونكی او هغه څوك چي لواطت ورسره كېدئ دواړه مړه كړئ. (۴۴)

په بل حديث كي رسول ﷺ فرمايلي دي: څلور كسان دي چي باندی سهار سي د الله جل جلاله په غضب كي وي او چي باندي ماښام سي د الله جل جلاله په ناراضي كي وي. چا پوښتنه وكړه چي دا څوك دي؟ يا رسول الله! ده مبارک ﷺ وفرمايل:

۱. هغه كسان دي چي د ښځو سره مشابهت كوي (يعني ځانونه د ښځو سره په شكل، لباس او اعمالو كي برابروي، د ښځو په ډول د سر وړېښتان جوړول، ږيره خريل او داسي نور...).

(۴۳) سورة هود، الاية: ۸۲.

(۴۴) عن ابن عباس رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: من وجدتموه يعمل عمل قوم لوط فاقتلوا الفاعل والمفعول به. (أخرجه أبو داود: ۱۵۸/٤، رقم: ٤٤٦٢، والترمذي: ٥٧/٤، رقم: ١٤٥٦)

۲. هغه ښځې دي چې د نارينوو سره مشابهت کوي (يعني ښځې د نارينوو په څېر خپل شکل ، لباس او اعمال کوي، لکه:حجاب نه کول، د سر وېښتان ډېر لنډول او داسي نور...).
۳. هغه څوک دئ چې د حيوان سره جماع کوي.
۴. هغه څوک دئ چې د نارينه سره جماع کوي يعني لواطت کوي. (۴۵)

لواطت کول د الله جل جلاله د زيات قهر او غضب سبب ګرځي، ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: کوم وخت چې نارينه د نارينه لواطت پيل کړي الهي عرش د الله جل جلاله دق هر د بيري وربږدي او نژدې وي چې آسمانونه راولوېږي، ملايکي د آسمانو طرفونه ټينګ کړي او سورة اخلاص وايي تر هغه وخته پوري چې د الله جل جلاله قهر آرام سي. (۴۶)

په يوه بل حديث کي رسول الله ﷺ لواطت کوونکی د ملعونينو د جملې څخه شمېرلی دئ او داسي يې فرمايلي دي: اووه کسان دي چې د الله جل جلاله باندي لعنت دئ او الله جل جلاله د قيامت په ورځ د رحمت په نظر نه ورته ګوري او د قيامت په ورځ به د نورو دوږخيانو سره دوږخ ته

(۴۵) عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: أربعةٌ يصبحون فى غضبِ اللهِ ويمسون فى سَخَطِ الله: المتشبهون من الرجالِ بالنساءِ، والمتشبهاتُ من النساءِ بالرجالِ، والذى يأتى البهيمةَ، والذى يأتى الرجلَ. (أخرجه الطبرانى فى الأوسط: ٦٣/٧، رقم: ٦٨٥٨، والبيهقى فى شعب الإيمان: ٣٥٦/٤)

(٤٦) ذكرالسيوطى حديثا نحو هذا الحديث، رآه على ظهر نسخة ابن ابى شيبة بخط مغربى، لم يعرف كتابه فذكر سندا الى انس، قال: وكتب غيره عليه هذا اسناد رواه لين موضوع آهـ ذيل الآلى. (الكبائر، ج:١، ص:٥٥)

واچول سي (د هغو کسانو ځخه يو) لواطت کوونکی او هغه څوک دئ چي لواطت ورسره وسي.[47]

يعني دغه کسانو ته هيڅ وخت د الله جَلَّ جَلالُهُ د لعنت ځخه نه سي وتلای او نه الله جَلَّ جَلالُهُ د رحمت په نظر ورته ګوري تر څو چي توبه و نه باسي، خو که توبه وباسي نو الله جَلَّ جَلالُهُ تر هر چا زيات مهربان دئ.

حضرت عبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايلي دي: لواطت کوونکی چي بې له توبې مړ سي الله جَلَّ جَلالُهُ يې په قبر کي د خنزير په شکل اړوي.[48]

## يادونه:

د هلکانو سره مينه کول يا ورته کتل حرام دي. بدبختانه په ځينو خلګو کي داسي عادت وي چي زه و هلک ته د يوه ګل په سترګه ګورم يعني داسي مي خوښېږی لکه يو ګل چي د چا خوښېږي، د ناروا کار فکر نه لرم. دغسې فکر هم جائز نه دئ، ځکه سفيان بن سعيد الثوری رَحِمَهُ اللهُ ته يو ښايسته هلک راننواتئ ده مبارک وويل: دا هلک وباسئ ځکه د هري ښځي سره شيطان ورسره وي او د هلک سره پوره ډله شيطانان ورسره وي.[49]

يعني داسي شيطانان چي و ناروا ته هڅوونکی وي.

---

[47] ذكره ابن الجوزی فی الموضوعات، وقال: لايصح مروان بن محمد يروی المناكير واسماعيل بن ام درهم لايحتج . (لسان الميزان: ٤٤٦/١، وكشف الخفاء: ٥٣٢/٢)

[48] كتاب الكبائر، ص: ٦٣.

[49] سفيان بن سعيد الثوری ابوعبدالله الكوفی احد الاعلام . قال الخطيب: كان الثوری اماما من ائمة المسلمين وعلما من اعلام الدين مجمعا على امامته مع الاتقان، والضبط، والحفظ، والمعرفة، والزهد، والورع، توفی فی البصرة سنة ١٦٠آهـ خلاصة ملخصا. (كتاب الكبائر، ص: ٦٤)

حضرت امام احمد رحمه الله ته يو سړی راغلئ چي يو ښايسته هلک ورسره وو. امام احمد رحمه الله پوښتنه ځني وکړه چي دا هلک دي څه دئ؟ سړی ورته وويل: دا مي د خور زوی دئ. امام احمد رحمه الله ورته وويل: بله ورځ يې دلته مه راوله او مه يې پر لاري ملگری کوه، ځکه هغه څوک چي تا نه پيژني پر تا به بد گومان وکړي. (۵۰)

د حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه څخه روايت دئ، چي په يو کلي کي يو سړي لواطت وکړئ. حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د اصحابانو څخه د دغه سړي د سزا په اړه مشهوره وغوښته، حضرت علی رضي الله عنه ورته وويل: دا داسی گناه ده چي بل چا نه ده کړې مگر يو د لوط قوم عليه السلام کړې ده، موږ ته الله جل جلاله د هغه قوم د عذاب خبر راکړی دئ، هغه عذاب ته په کتو سره زما دا مشوره ده چي دا سړی په اور وسوځئ. ابوبکر صديق رضي الله عنه د ده مشوره قبوله کړه او سمدلاسه يې وليکل: دغه لواطت کونکی په اور وسوځئ. خالدبن وليد رضي الله عنه د ابوبکر رضي الله عنه فرمان عملي کړ يعني هغه سړی يې په اور وسوائځ. (۵۱)

سبحان الله! د الله جل جلاله رسول صلی الله علیه وسلم او اصحابان څومره مهربانه انسانان وه، د دوی سختو فيصلو ته چي وکتل سي معلومېږي چي لواطت ييخي لويه گناه ده ځکه نو دومره ځان ځني ساتل پکار دي، چي ييخي پر هغه خوا لا هم مسلمان بايد ورنژدې نه سي. (اعاذنا الله)

(۵۰) کتاب الکبائر، ص: ۶۴.

(۵۱) رواه ابن ابی دنيا ومن طريقه البهيقی بسند جيد، قاله المنذری.

# (۱۲) لويه ګناه: سود کول

سود هغه ناوړه عمل دئ چي د ټولني د قيمت لرونکو شيانو قيمتونو ته خلل رسوي په نتيجه کي ټولنه ديو بحراني حالت سره مخ کيږی.دا چي د نړی کفار نور نظرونه ورکوي د دې نظرونو باطل والی به ډېر ژر وخت ثابته کړي

د سود په اړه الله جل جلاله داسي فرمايلي دي:

﴿وَاَحَلَّ اللّٰهُ الۡبَيۡعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا﴾ (۵۲)

ژباړه: الله جل جلاله بيعه (خرڅول او رانيول) روا کړي دي او سود يې حرام کړی دئ.

د سزا په اړه يې الله جل جلاله فرمايلي دي:

﴿اَلَّذِيۡنَ يَاۡكُلُوۡنَ الرِّبٰوا لَا يَقُوۡمُوۡنَ اِلَّا كَمَا يَقُوۡمُ الَّذِىۡ يَتَخَبَّطُهُ الشَّيۡطٰنُ مِنَ الۡمَسِّ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمۡ قَالُوۡۤا اِنَّمَا الۡبَيۡعُ مِثۡلُ الرِّبٰوا﴾ (۵۳)

ژباړه: هغه کسان چي سود خوري د قيامت په ورځ به دوی د شک وتلي په دې ډول راپورته سي، چي شيطان به يې حواس ورخراب کړي وي، دا په دې وجه چي دوی وايي: سود هم د بيعي (د خرڅولو او رانيولو) په څېر (روا معامله)ده.

(۵۲) سورة البقرة، الاية: ۲۷۵.

(۵۳) سورة البقرة، الاية: ۲۷۵.

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: کله چي زه آسمان ته وختلم ما تالنده او ټکه وليدل او داسې خلګ مي وليدل، چي نسونه يې دومره غټ وه لکه د خوني نسونه او دا نسونه يې مخته پراته وه، په دغو نسو کي لړمان او ماران وه، چي سربېره معلومېده. ما جبرئيل عليه السلام ته وويل: دا څوک دي؟ جبرئيل عليه السلام راته وويل: دا هغه کسان دي چي سود يې خوړونکي وه.[۵۴]

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي: رسول الله ﷺ فرمايي: کوم وخت چي په يوه کلي کي زنا او سود ښکاره سي الله جل جلاله د دې کلی د هلاکت اجازه ورکړي (يعني دا چي نور پر دې کلي باندي عذاب نازل کړئ).[۵۵]

# (۱۳) لويه ګناه: د يتيم مال په ظلم خوړل

د ماشومتوب نازکه مرحله چي د مشکلاتو د حل لپاره الله جل جلاله لوی نعمت پلار ورته پيدا کړی دئ، د پلار په برکت د ماشومتوب ټول مشکلات حل وي؛ نه د لوږي مشکل وي، نه د تندي مشکل وي، نه د

---

(۵۴) حدثنا عبد الله حدثني أبي حدثنا عبد الصمد بن عبد الوارث حدثنا حماد عن علي بن زيد عن أبي الصلت عن أبي هريرة أن رسول الله ﷺ قال: انتهيت إلى السماء السابعة فنظرت فإذا أنا فوقي برعد وصواعق ثم أتيت على قوم بطونهم كالبيوت فيها الحيات ترى من خارج بطونهم، فقلت: من هؤلاء؟ قال: هؤلاء أكلة الربا. فلما نزلت وانتهيت إلى سماء الدنيا فإذا أنا برهج ودخان وأصوات، فقلت: من هؤلاء؟ قال: الشياطين يحرفون على أعين بني آدم أن لا يتفكروا في ملكوت السماوات والأرض ولولا ذلك لرأت العجائب. (ابن حنبل في مسنده، ج:۲، ص:۳۶۳ ، ح۸۷٤۲)

(۵۵) إذا ظهر الزنا والربا فى قريةٍ فقد أحلوا بأنفسهم كتابَ اللهِ (وفي لفظ حاكم: عذاب الله). (أخرجه الطبرانى: ۱۷۸/۱، رقم: ٤٦٠، والحاكم: ٤٣/٢، رقم: ٢٢٦١، وقال: صحيح الإسناد، والبيهقى فى شعب الإيمان: ٣٦٣/٤، رقم: ٥٤١٦)

ناروغۍ د علاج مشکل وي، نه د یخ مشکل وي، نه د ګرمۍ مشکل وي، د دې ټولو مشکلاتو د حل لپاره الله جل جلاله د ماشوم پلار سبب جوړ کړی وي د دې نعمت د زوال په وخت کې ماشوم د ډېرو مشکلاتو سره لاس او ګرېوان سي، ځکه د دفاع هیڅ په لاس کې نه لري نو که څوک د یتیم د دغه کمزورې حالت څخه استفاده وکړي او مال یې په ظلم سره وخوري لویه ګناه ده، ځکه الله جل جلاله فرمایي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا ۖ وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا ۝﴾ (٥٦)

ژباړه: باور وکړئ هغه کسان چې د یتیمانو مالونه په ظلم سره خوري په حقیقت کې دوی په خپلو نسونو کې اور اچوي، دا کسان به ډېر ژر دوږخ ته واچول سي.

یعني کوم کسان چې بې له شرعي لارې د یتیمانو مالونه خوري دا په حقیقت کې د دوی په نس کې اور دئ او دوږخ ته به ځي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د معراج په قصه کې د یتیم د مال خوړونکی په اړه داسې فرمایلي دي: زه پر داسې کسانو راغلم چې نور خلګ پر مؤظف سوي وه خولې یې ورخلاصولې، نورو بیا لوی ډبرې راوړلې دوی یې په خولو کې په ویشتل او هغه ډبرې یې تر دبره (یعني د مرداري د وتلو تر ځای) وتلې، ما پوښتنه وکړه: اې جبرئیل! دا څوک دي؟ جبرئیل علیه السلام راته وویل: دا هغه کسان دي چې د یتیمانو مالونه په ظلم سره خوري په حقیقت کې دوی خپلو نسونو ته اور اچوي. (٥٧)

---

(٥٦) سورة النساء، الاية: ١٠.

(٥٧) عن أبي سعيد الخدري قال: قلنا: يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! ما رأيت ليلة أسري بك؟ قال: انطَلَق بي إلى خَلْقٍ من خَلْقِ الله كثير رِجَال، كل رجل له مِشْفَران كمشفري البعير، وهو موكَّل بهم رجال يفكون لحاء أحدهم، ثم يُجَاءُ بِصَخْرَةٍ من نار فَتُقْذَف في فِي أحدهم حتى يخرج من أسفله ولهم خُوار وصُرَاخ. قلت:

حضرت ابوهريرةﷺ د رسول اللهﷺ څخه روايت کوي، چې رسول اللهﷺ فرمايلي دي: اللهﷻ به د قيامت په ورځ داسي خلګ د قبرو څخه راپورته کړي، چې د نسو څخه يې اور راوځي او د خولې څخه به يې د اور توښونه راوزی. يو چا پوښتنه وکړه، چې دا څوک دي؟ يا رسول الله! رسول اللهﷺ وفرمايل: آيا ته نه پوهېږې چې اللهﷻ فرمايي: هغه کسان چې د يتيمانو مالونه په ظلم سره خوری دا په حقيقت کي اور خوري. (۵۸)

## (۱۴) لويه ګناه: پر اللهﷻ او پر رسولﷺ باندي درواغ ويل

څوک چې د خپلي خوښي سره برابره پرېکړه کوي او په دليل کي يوه وينا کوي او نسبت يې اللهﷻ او د هغه رسولﷺ ته کوي، په حقيقت کي د اللهﷻ او د رسولﷺ وينا نه وي يعني د ځانه درواغ جوړوي بيخي لويه ګناه ده، ځکه د يوې خوا يې دين د خپل طبيعت تابع کړ او د خپلي خوا پر اللهﷻ او رسول اللهﷺ باندي درواغ وويل، تر هغه مهاله مسلمان بيخي مسلمان نه دئ چې خپل طبيعت د دين تابع جوړ نه کړي دا خو لاپرېږده چې پر اللهﷻ باندي درواغ

---

يا جبريل! من هؤلاء؟ قال: هؤلاء الذين يأكلون أموال اليتامى ظُلْمًا إنما يأكلون في بطونهم نارا وسَيَصْلَوْن سَعِيراً. (ابن كثير، سورة النساء، الاية: ١٠. ورواه الطبري في تفسيره: ٢٧/٨ من طريق معمر عن أبي هارون العبدي به.

(۵۸) عن أبي برزة أن رسول الله ﷺقال: يبعث يوم القيامة القوم من قبورهم تَأَجَّج أفواههم نارا. قيل: يا رسول الله ﷺ! من هم؟ قال: ألم تر أن الله قال: إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا. (ابن كثير، سورة النساء، الاية: ١٠)

وو ایي. الله جل جلاله یوه وینا نه وي کړې ته وایي: دا الله جل جلاله ویلي دي، د دغي موضوع په اړه الله جل جلاله فرمایي:

﴿وَيَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ تَرَى الَّذِيۡنَ كَذَبُوۡا عَلَى اللّٰهِ وُجُوۡهُهُمۡ مُّسۡوَدَّةٌ ؕ اَلَيۡسَ فِىۡ جَهَنَّمَ مَثۡوًى لِّلۡمُتَكَبِّرِيۡنَ ۝﴾[٥٩]

ژباړه: د قیامت په ورځ به هغه کسان ووینې چې پر الله جل جلاله باندې دروغ وایي مخونه به یې تور وي.

په بل ځای کې الله جل جلاله فرمایي:

﴿وَمَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنِ افۡتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوۡ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفۡلِحُ الظّٰلِمُوۡنَ ۝﴾[٦٠]

تر هغه چا به لوی ظالم څوک وي چې پر الله جل جلاله باندې دروغ وایي او یا یې د آیتونو څخه انکارکوي؟ باور وکړئ! ظالمان به خلاص نه سي.

یعني دا چې هغه چا ته الله جل جلاله تر ټولو لوی ظالم ویلی دئ، چې د ځانه پر الله جل جلاله باندې خبري جوړوي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: څوک چې پر ما دروغ ووایي، په جهنم کې دي د ناستي ځای ورته جوړ کړل سي.[٦١]

په بل ځای کې رسول الله صلی الله علیه وسلم داسي فرمایلي دي: څوک که پر ما دروغ وایي داسی نه دئ لکه پر بل چا چې دروغ ووایي، څوک چې

---

[٥٩] سورة الزمر، الاية: ٦٠.

[٦٠] سورة الانعام، الاية: ٢١.

[٦١] عن أنس قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من كذب علي متعمدا فليتبوأ مقعده من النار. (لم يرو هذا الحديث عن شعبة إلا حرمي بن عمارة وأبو داود الطيالسي، الطبراني في معجمه الأوسط، ج: ٢، ص: ٢٦٣، ح: ١٩٣٠)

قصداً پر ما دروغ ووايي د ناستي ځای دي په دوزخ کي ورته تيار سي.[٦٢]

## (١٥) لويه ګناه: د جهاد په ډګر کي تېښته کول

د مسلمانانو او کافرانو د جګړې پر مهال تېښته کول يعني پر شا تلل لويه ګناه ده، البته دا هغه وخت ګناه ده چي د کافرانو شمېر تر هغه اندازې زيات وي کوم چي شريعت ورته ټاکلی دئ او دغه شمېر په دې اندازه دئ، چي يو مسلمان به د دوو کافرانو څخه تېښته نه کوي، دوه مسلمانان به د څلورو کافرانو څخه نه تښتي او که د کافرانو شمېر د مسلمانانو د شمېر په دوه برابره زيات وي بيا نو تېښته کول جائز ده. بله خبره دا ده، چي د مسلمانانو دغه شاتګ به د يوه جنګي تکتيک او يا د نورو ملګرو سره ديوځای والي په موخه نه وي.[٦٣]

که څوک يوازې د ويرې په وجه باندي شا ته وځغلي لويه ګناه ده، ځکه الله جل جلاله فرمايي:

[٦٢] حدثنا عبد الله حدثني أبي ثنا قران بن تمام عن سعيد بن عبيد الطائي عن علي بن ربيعة الأسدي، قال: مات رجل من الأنصار يقال له قرظه بن كعب فنيح عليه فخرج المغيرة بن شعبة فصعد المنبر فحمد الله وأثنى عليه، ثم قال: ما بال النوح في الإسلام أما اني سمعت رسول الله ﷺ يقول: ان كذبا علي ليس ككذب على أحد الا ومن كذب علي متعمدا فليتبوأ مقعده من النار ،الا وأني سمعت رسول الله ﷺ يقول: من ينح عليه يعذب بما يناح به عليه. (ابن حنبل في مسنده، ج: ٤، ص: ٢٤٥، ح:١٨١٦٥)

[٦٣] اِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ عِشْرُوْنَ صٰبِرُوْنَ يَغْلِبُوْا مِائَـتَيْنِ وَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ يَّغْلِبُوْٓا اَلْفًا مِّنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ (٦٥) اَلْئٰنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًافَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَّغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ وَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ اَلْفٌ يَّغْلِبُوْٓا اَلْفَيْنِ بِاِذْنِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ(٦٦) (سورة الانفال، الايتان: ٦٥، ٦٦)

﴿وَمَنْ يُّوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهٗ اِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ اَوْ مُتَحَيِّزًا اِلٰى فِئَةٍ فَقَدْ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَمَاْوٰىهُ جَهَنَّمُ ۚ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ﴾[٦٤]

ژباړه: څوک چې په دغه ورځ (يعني د مسلمانانو د جګړې په ورځ ) شا وګرځوي (يعني شا ته وتښتي) او پر شا تلل يې د دې لپاره نه وي چې دښمن ته دوکه ورکړي او نه په دې موخه وي چې د مسلمانانو ډلي ته ځان ورسوي، نو د شک وتلی دغه سړی د الله جل جلاله په غضب اخته سو، ځای به يې دوږخ وي او دوږخ ډېر بد ځای دئ.

رسول الله ﷺ د کافرانو د جګړې څخه د مسلمان تېښته هلاک کوونکې بللې ده او داسي يې فرمايلي دي: د اوو (۷) هلاک کوونکو شيانو څخه ځانونه وساتئ! چا پوښتنه وکړه، چي دغه اووه شيان څه شي دي؟ يا رسول الله ﷺ! ده مبارک ﷺ وفرمايل: د الله جل جلاله سره شريک نيول، سحر (يعني جادو) کول، انسان وژل مګر په حق سره، ريا کول، د يتيم مال خوړل، د جهاد په وخت کي تېښته کول او پاکو مؤمنانو ښځو ته د زنا نسبت کول.[٦٥]

[٦٤] سورة الانفال، الاية: ١٦.

[٦٥] عن أبي هريرة رضي الله عنه أن النبي ﷺ قال: اجتنبوا السبعَ المُوبِقَات: الشركُ بالله، والسِّحْرُ، وقتلُ النفسِ التى حرم الله إلا بالحق، وأكلُ الربا، وأكلُ مالِ اليتيم، والتولِّي يومَ الزَّحْفِ، وقذفُ المحصنات الغافلات المؤمنات. (أخرجه البخارى: ١٠١٧/٣، رقم: ٢٦١٥، ومسلم: ٩٢/١، رقم: ٨٩ ، وأبو داود: ١١٥/٣، رقم: ٢٨٧٤، والنسائى: ٢٥٧/٦، رقم: ٣٦٧١)

## (١٦) لويه ګناه: د مشرتوب څخه ناوړه ګټه اخيستل او د ولس سره ظلم کول

څوک چې د ولس امير ټاکل سوی وي توان يې تر نورو زيات دئ کولای سي، چې ښه مشرتوب وکړي، خپل واک پر صحيح ډول استعمال کړي يعني د رعيت سره داسی معامله وکړي چې د الله جل جلاله او د هغه د رسول ﷺ رضا پکښې وي او کولای سي چې بد مشرتوب وکړي يعني پر ولس باندي ظلم وکړي. که څوک د خپل واک او مشرتوب څخه ناوړه ګټه پورته کوي پر خپل لاس لاندي خلکو باندي ظلم کوي دا لويه ګناه ده، ځکه الله جل جلاله فرمايي:

﴿إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَظْلِمُونَ النَّاسَ وَيَبْغُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ۚ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝٤٢﴾(٦٦)

ژباړه: باور وکړئ چې عذاب پر هغو کسانو سته چې پر خلکو ظلم کوي او په مځکه کي په ناحقه سرکښي کوي، دغو کسانو ته سخت دردوونکی عذاب دئ.

همدا ډول رسول الله ﷺ فرمايي: هر مشر چې د خپل ولس سره کوږوالی وکړي په دوږخ کي به وي.(٦٧)

رسول الله ﷺ د ښه مشر په اړه ښه دعا کړې ده او فرمايلي يې دي: اې لويه ربه! څوک چې د دې امت د يو شي مشرتوب کوي او د

---

(٦٦)سورة الشورى، الاية: ٤٢.

(٦٧)عن معقل بن يسار قال: سمعت النبي ﷺ يقول: ما من راع غش رعيته إلا وهو في النار. (الطبراني في معجمه الكبير، ج:٢٠، ص:٢٢٨، ح:٥٣٣)

خپل لاس لاندي خلکو سره نرمي او ښه چلند وکړي پر دغه مشر باندي ته نرمي وکړې، څوک چي پر دوی باندی شفقت کوي پر هغه شفقت وکړې.[٦٨]

رسول الله ﷺ فرمايي: د قيامت په ورځ به تر ټولو لوی عذاب د ظالم مشر وي.[٦٩]

## (١٧) لويه گناه: لويي، فخر او خيال كول

کبر کول يوازي د الله جل جلاله د شان سره ښايي د بل هيچا سره نه ښايي، ځکه که انسان لږ فکر وکړي ډېر ناتوانه دئ د ناتوانه چا سره کبر کول ناپوهي ده. الله جل جلاله وايي:

﴿إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلۡمُسۡتَكۡبِرِينَ ٢٣﴾[٧٠]

باور وکړئ! الله جل جلاله کبر کوونکي نه خوښوي.

رسول اکرم ﷺ وسلم فرمايي: د چا په زړه کي چي يوه زره کبر موجود وي جنت ته به داخل نه سي. چا پوښتنه وکړه: که کوم سړی ښې جامې او ښه بوټونه خوښوي (دا هم کبر دئ)؟ رسول الله ﷺ

---

[٦٨] عن عبد الرحمن بن شماسة قال: أتيت عائشة زوج النبي ﷺ أسألها عن شيء، فقالت: أخبرك بما سمعت من رسول الله ﷺ يقول في بيتي هذا: اللهم من ولي من أمر أمتي شيئا فشق عليهم فأشقق عليه، ومن ولي من أمر أمتي شيئا فرفق بهم فارفق به. (ابن حنبل في مسنده، ج: ٦، ص:٩٣، ح: ٢٤٦٦٦)

[٦٩] عن ابي سعيد قال: قال رسول الله ﷺ: أشد الناس عذاباً يوم القيامة إمام جائر. (أخرجه أبو يعلى: ٣٤٣/٢، رقم: ١٠٨٨، والطبرانى فى الأوسط: ١٦/٢، رقم: ١٥٩٥، وأبو نعيم فى الحلية: ١١٤/١٠)

[٧٠] سورة النحل ، الاية: ٢٣.

وفرمایل: (دا کبر نه دئ) الله جل جلاله ښایسته ذات دئ ښایست خوښوي.(۷۱)

یعني دا چي د ښو شیانو استعمال کبر نه دئ، بلکي کبر دا دئ، چي ښه شیان په دې نیت استعمال کړل سي چي ځان تر نورو لوړ وښیي.

رسول اکرم ﷺ فرمایلي دي: الله جل جلاله فرمایی: لویي زما ده او کبر زما خاصه ده څوک چي زما سره په دې خویونو کي ځان ګډوي دوږخ ته به یې اچوم.(۷۲)

رسول الله ﷺ فرمایلي دي: تر ټولو مخکي به درې کسان دوږخ ته ځي:

۱. ظالم امیر.
۲. شتمن سړی چي زکاة نه ورکوي.
۳. مسکین کبر کوونکی.(۷۳)

حاصل دا چي څوک کبر کوونکی وي هغه، هغه څوک دئ چي الله جل جلاله سخت نفرت ځني کوي او الله جل جلاله یې جهنم ته اچوي (الا ماشاء الله).

(۷۱) لا یدخل الجنة من کان فی قلبه مثقال ذرة من کبر، قیل: إن الرجل یحب أن یکون ثوبه حسنا ونعله حسنة، قال: إن الله جمیل یحب الجمال الکبر بطر الحق وغمط الناس. (أخرجه مسلم: ۹۳/۱، رقم: ۹۱)

(۷۲) عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: قال الله: الکبریاء ردائی والعظمة إزاری فمن نازعنی واحدا منهما قذفته فی النار. (أخرجه أحمد: ٤١٤/٢، رقم: ٩٣٤٨، وهناد فی الزهد: ٤٢١/٢، رقم: ٨٢٥، وأبو داود: ٥٩/٤، رقم: ٤٠٩٠، وابن ماجه: ١٣٩٧/٢، رقم: ٤١٧٤، وأخرجه أیضا ابن حبان: ٤٨٦/١٢، رقم: ٥٦٧١)

(۷۳) رواه ابن خزیمة وابن حبان فی صحیحهما آهـ . منذری.

# (۱۸) لويه ګناه: په درواغو شاهدي ورکول

څوک چې په درواغو شاهدي ورکوي د يوه مسلمان حق په بل خوري د مثال په ډول د دوو کسانو پر يوه ځمکه يا پر مال دعوه وي يو بل کس پوهېږي چې په دوی دوو کې يو پر ناحقه دئ، خو کوم وخت چې د فيصلې ځای راسي ياد کس د ناحقه دعوه کوونکي په ګټه شاهدي ورکړي او يا داسې نور. داسي کړنه ستره ګناه ده، ځکه الله جل جلاله د خپلو ښو بندګانو تعريف داسي کوي:

﴿وَالَّذِيْنَ لَا يَشْهَدُوْنَ الزُّوْرَ﴾ (۷۴)

او (د توبې تر څنګ) هغه کسان دي چې و باطل ته نه حاضرېږي (يعني د درواغو شاهدي نه ورکوي).

په بل ځای کي الله جل جلاله فرمايي:

﴿وَاجْتَنِبُوْا قَوْلَ الزُّوْرِ﴾ (۷۵)

د ناحقه شاهدۍ څخه ځانونه وساتئ.

په يوه حديث کي راغلي دي، چې د درواغو شاهدي په ګناه کي د شرک سره برابره ده. (۷۶)

په يوه بل حديث کي راغلي دي: درواغجن شاهد به د قيامت په ورځ د ځايه لا نه وي ښورېدلی چې دوږخ به ورته واجب سي. (۷۷)

---

(۷٤) سورة الفرقان ، الاية: ۷۲.

(۷٥) سورة الحج، الاية: ۳۰.

(۷٦) حدثنا علي بن عبد العزيز ثنا أبو نعيم ثنا سفيان عن عاصم بن أبي النجود عن وائل بن ربيعة عن عبد الله قال: عدلت شهادة الزور الشرك بالله، وقرأ واجتنبوا قول الزور. (الطبراني في معجمه الكبير، ج: ۹، ص: ۱۰۹، ح:۸٥٦۹)

امام ذهبي رحمه الله په کتاب "الکبائر" کي لیکي: د دروا غو شاهدي تر ټولو لویه ګناه ده، ځکه په دې ګناه کي څلور (۴) ګناوي سته: لومړی دا چي درواغ یې وویل، دوهم دا چي ظلم یې وکړ د یوه حق یې په بل وخوړ، درېیم دا چي په بل یې حرام وخوړل، څلورم دا چي هغه څه چي الله جل جلاله حرام بللی وه هغه یې حلال وبلل.

# (۱۹) لویه ګناه: شراب چیښل

شراب چي د انسان دنیوي ژوند هم د سختو ستونزو سره مخ کوي الله جل جلاله حرام ګرځولي دي او فرمایلي یې دي:

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۝٩٠﴾ (۷۸)

ژباړه: اې مؤمنانو! باور وکړئ! شراب، قمار، بتان او (د فال لپاره) غشي، مرداري ده د شیطان کار دئ نو ځانونه ځني وساتئ څو تاسو کامیاب سئ.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: د شرابو څخه ځانونه وساتئ ځکه دا خبره یقیني ده، چي شراب د ټولو شرونه کیلي ده. (۷۹)

---

(۷۷) حدثنا سويد بن سعيد ثنا محمد بن الفرات عن محارب بن دثار عن بن عمر قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: لن تزول قدما شاهد الزور حتى يوجب الله له النار. (ابن ماجه في سننه، ج: ۲، ص: ۷۹٤، ح: ۲۳۷۳)

(۷۸) سورة مائدة، الاية: ۹۰.

(۷۹) عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: اجتنبوا الخمر فإنها مِفْتاح كلِّ شرٍّ. (أخرجه الحاكم: ١٦٢/٤، رقم: ٧٢٣١)

څوک چي ځان ځني و نه ساتي د ټولو شرونه دروازه به باندي راخلاصه سي بيا به د الله جل جلاله په نافرمانۍ کي ولوېږي په دغه نافرمانۍ سره به د عذاب ښخه برخمن سي.

رسول اکرم ﷺ فرمايلي دي: څوک چي شراب وڅيښي څلوېښت ورځي به نجس وي، کله چي يې توبه وايسته بېرته پاکېږي او که يې بيا وڅيښل بيا به څلوېښت ورځي نجس وي.[80]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: هر نشه ورکوونکی شی حرام دئ (لکه: شراب، هيروئين...)، الله جل جلاله دا وعده کړې ده چي څوک نشه لرونکی شی وڅيښي (يعني شراب وڅيښي) په "طينة الخبال" به يې اوبه وي. يو چا پوښتنه وکړه: يا رسول الله ﷺ! "طينة الخبال" څه شي دئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: "طينة الخبال" د دوږخيانو د بدن خوله ده او يا د دوی څخه نښتېځل سوي اوبه دي.[81]

(٨٠) وعن ابن عباس رضي الله عنهما قال: قال رسول الله ﷺ: من شرب الخمر كان نجسًا أربعين يومًا فإن تاب منها تاب الله عليه وإن عاد عاد نجسًا، وإن تاب تاب الله عليه فإن عاد عاد نجسًا أربعين يومًا فإن تاب منها تاب الله عليه، فإن رجع كان حقا على الله أن يسقيه من ردغة الخبال. (أخرجه الطبرانى فى الكبير: ٢٤٩/١٢، رقم: ١٣٠١٥، وأخرجه أيضًا فى مسند الشاميين: ٤٣٤/١، رقم: ٧٦٥)

(٨١) قَالَ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ: كُلّ مُسْكِرٍ حَرَام إِنَّ عَلَى اللهِ عَهْدًا لِمَنْ شَرِبَ الْمُسْكِرِ أَنْ يَسْقِيه مِنْ طِينَة الْخَبَال، قَالُوا: يَا رَسُول اللَّهِ ﷺ! وَمَا طِينَة الْخَبَال؟ قَالَ: عَرَق أَهْل النَّار أَوْ عُصَارَة أَهْل النَّار. وَفِي مُسْنَد الْإِمَام أَحْمَد عَنْ أَبِي هُرَيْرَة أَنَّ النَّبِيّ ﷺ قَالَ: كُلّ مُسْكِر حَرَام. (وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ، وَالتِّرْمِذِيّ، وَابْن مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيّ: صَحِيح) وَفِي سُنَن اِبْن مَاجَهْ عَنْ اِبْن مَسْعُود عَنْ النَّبِيّ ﷺ أَنَّهُ قَالَ: كُلّ مُسْكِر حَرَام. (قَالَ اِبْن مَاجَهْ: هَذَا حَدِيث الْمِصْرِيِّينَ رَوَاهُ مِنْ حَدِيث أَيُّوب بْن هَانِئ عَنْ مَسْرُوق عَنْهُ... أخرجه البزار كما فى كشف الأستار: ٣٥٤/٣، رقم: ٢٩٢٧، و أخرجه أبو داود: ٣٢٧/٣، رقم: ٣٦٨٠ ، والبيهقى: ٢٨٨/٨، رقم: ١٧١٢١)

# (۲۰) لویه ګناه: قمارکول

قمارکول حرام دئ، ځکه الله جَلَّ جَلَالُهُ قمار پلیتي (نجاست) بللی دئ او فرمایلي یې دي:

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۝٩٠﴾ (۸۲)

اې مؤمنانو! باور وکړئ چې شراب، قمار، بتان او (د فال لپاره) غشي مرداري ده د شیطان کار دئ، نو ځانونه ځني وساتئ څو تاسو کامیاب سئ.

رسول الله ﷺ فرمایلي دي: که چا ملګري ته وویل: راسه! قمار وکړو نو خیرات دې وکړي. (۸۳)

یعنی بې له دې چې قمار وکړي تش په ویلو به لا خیرات کوي او که قمار وکړي نو څومره ګناه به یې وي؟

رسول الله ﷺ فرمایلي دي:

چا که په "نرد شیر" بازي وکړه (چې د قمار یوه خاصه بازي ده، داسې مثال لري) لکه لاس چې یې د خنزیر په وینو او غوښو ولړل سي. (۸۴)

---

(۸۲) سورة المائدة،الاية: ۹۰.

(۸۳) عن سعيد بن المسيب عن عمر قال: سمع النبى ﷺ رجلا يقول لرجل: تعال! أقامرك، فأمره أن يتصدق بصدقة. (كنز العمال: ٤٠٦٧٤. أخرجه أبو يعلى: ١٩٧/١، رقم ٢٢٧)

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: الله جل جلاله په هره ورځ کي خپل مخلوق ته درې سوه شپېته نظره د رحمت لري د شطرنج کوونکي پکښې برخه نه ستة.[٨٥]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: د قيامت په ورځ به سخت عذاب د شطرنج کوونکي وي.[٨٦]

## (۲۱) لويه ګناه: مسلمان د زنا په تور نيول يا هم ورته ښکنځل کول

دغه ګناه ته "قذف" وايي. د قذف بيان داسي سوی دئ، چي يو ځوک پاک مسلمان نارينه يا ښځي ته ووايي: اې زناکاره! يا اې زنا کارې! يا د يو چاميرمني ته ووايي: اې د زناکار ميرمني! يا د يوې ښځي خاوند ته ووايي: اې د زناکاري خاونده! يا د يو چا زوی يا لور ته ووايي: اې حرامي! نارينه وي که ښځينه وي او يا يو هلک ته ووايي: اې لواطت کوونکې! که چا داسی وويل: نو دلته ويونکي ته دوې لاري دي: يا خو به پر هغه سړي د زنا يا لواطت څلور شاهدان تېروي يا يې لويه ګناه وکړه پر دنيا باندي يې عذاب دادئ، چي اتيا

[٨٤] حَدَّثَنِى زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِىٍّ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِىَّ ﷺ قَالَ: مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدَشِيرِ فَكَأَنَّمَا صَبَغَ يَدَهُ فِى لَحْمِ خِنْزِيرٍ وَدَمِهِ. (أخرجه مسلم، رقم: ٦٠٣٣، ٢ - باب تَحْرِيمِ اللَّعِبِ بِالنَّرْدَشِيرِ)

[٨٥] و روى أبو بكر الأثرم في جامعه عن واثلة بن الأسقع عن رسول الله ﷺ قال: إن الله في كل يوم ثلثمائة رضي الله عنه ستين نظرة إلى خلقه ليس لصاحب الشاه فيها نصيب ـ يعني لاعب الشطرنج لأنه يقول شاه مات. (المؤطا - باب اللعب ، ح: ٩٠۴)

[٨٦] و روي عنه ﷺ أنه قال: أشد الناس عذابا يوم القيامة صاحب الشاه يعني صاحب الشطرنج. (كنز العمال :١٥ / ٤٠٦٤٤)

دورې به وهل کېږي او په آخرت کې هم لوی عذاب ورته سته، ځکه الله جل جلاله فرمایي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ الْغَافِلَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ لُعِنُوا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ (۸۷)

ژباړه: باور وکړئ کوم کسان چې پاکې ښځې، د زنا څخه ناخبره ښځې او مؤمناني ښځې (د زنا په) تور نیسي په دنیا او آخرت دواړو کې وربانديي لعنت دئ او د دوی لپاره لوی عذاب دئ.



## یادونه:

د علماوو د تحقیق له مخې د دوی د دنیا لعنت دا دئ، چې اتیا دورې به وهل کیږي او د تل لپاره به یې شاهدي نه قبلیږي، ځکه الله جل جلاله فرمایي:

﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا وَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ﴾ (۸۸)

ژباړه: کوم کسان چې پاکې ښځې د زنا په تور نیسي او بیا څلور شاهدان (د خپلې خبرې د ثبوت په موخه) نه راولي، نو تاسو یې اتیا دورې ووهئ او د تل لپاره شاهدي مه ځني قبلوئ اودغه کسان فاسقان دي.

---

(۸۷) سورة نور، الاية: ۲۳.

(۸۸) سورة نور، الاية: ۴.

سبحان الله! په اوسني وخت کي څومره ډېر خلک په کور، کلي بازار کي داسي خبري کوي چي يو بل ته د زنا تر تور بدتري خبري دي، دا ټول د پورته آيت په حکم فاسقان دي او شاهدي يې منظوره نه ده، که اسلامي نظام وي قاضي يې بايد اتيا دورې ووهي.

رسول الله ﷺ فرمايي: د الله جل جلاله نفرت د هغه چا څخه کېږي چي ښکنځل کوي او يا بدي خبري کوي. [89]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: څوک چي پر الله جل جلاله او پر آخرت ايمان لري نو د خير خبره دي وکړي که نه نو چوپ دي پاته سي (بدي خبري خو دي بيخي نه کوي). [90]

## (۲۲) لويه ګناه: په بيت المال کي خيانت کول

بيت المال چي د ټولو مسلمانانو سره شريک دئ که څوک خيانت پکښي وکړي نو تر څو چي ټول مسلمانان بخښنه ورته و نه کړي د الله جل جلاله د عذاب څخه نه سي خلاصېداى، داسی نه ده لکه غلا چي هغه سړى بخښنه ورته وکړي چي ده غلا ځني کړې ده نو رنو خلاص دئ که د الله جل جلاله خوښه وه، ځکه په بيت المال کي خيانت کوونکی کس د نړۍ پر ټولو مسلمانانو نه سي ګرځېدلاى چي بخښنه ځني وغواړي.

د خيانت کوونکي اړونده الله جل جلاله فرمايي:

---

(۸۹) وعن أَبي الدرداءِ رضي الله عنه: أن النبي ﷺ قَالَ: مَا مِنْ شَيْءٍ أَثْقَلُ في مِيزَانِ العبدِ المُؤْمِنِ يَوْمَ القِيَامَةِ مِنْ حُسْنِ الخُلُقِ، وَإِنَّ الله يُبْغِضُ الفَاحِشَ البَذِيَّ. (أخرجه: البخاري: ١٦/٣ ( ١٨٢٥ )، ومسلم: ١٣/٤ ( ١١٩٣ ))

(۹۰) عن ابن عمر عن النبي ﷺ قال: من كثر كلامه كثر سقطه ومن كثر سقطه كثرت ذنوبه ومن كثرت ذنوبه كان النار أولى، به ومن كان يؤمن بالله واليوم الآخر فليقل خيرا أو ليصمت. (القضاعي في مسند الشهاب، ج: ١، ص:٢٣٧، ح:٣٧٣)

﴿إِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْخَآئِنِيْنَ﴾[٩١]

باور وکړئ! الله جل جلاله خیانت کونکي نه خوښوي.

کوم وخت چي د بدر په غزاء کي د غنیمت مال ونیول سو یوه توره یا دوپټه (څادر) ورک سو. ځینو منافقانو د رسول الله ﷺ د سپکاوي په موخه ویل: دا به رسول الله ﷺ وړی وي. الله جل جلاله د دغه خبري د ښکاره کولو په موخه او په بیت المال کي د خیانت کوونکي د عذاب په اړه لاندنی آیت شریف نازل کړ:

﴿وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّغُلَّ ۚ وَمَنْ يَّغْلُلْ يَاْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾[٩٢]

د الله جل جلاله پیغمبر ته نه ښایي چي څه شی پټ کړي او څوک چي (د بیت المال) شی پټ کړي د قیامت په ورځ به هغه شی راوړي (خلکو ته به رسوا سي چي دغه کس څومره خیانت کړی وو او بیا به سزا ورکړل سي).

د بیت المال څخه کوم شی په خیانت، چم یا غلا اخیستل خو څه کوي، بلکي که څوک د بیت المال د ټولولو پر وظیفه وي او یو کس تحفه ورکړي دغه لا رسول الله ﷺ خیانت بللی دئ او سزا به د خائن ویني.[٩٣]

که څوک په بیت المال کي خیانت کوي پر دغه کس به د جنازې لمونځ نه کېږي، ځکه په یوه حدیث کي راځي چي روایت یې زید بن خالد جهني رضي الله عنه کوي: د خیبر په غزاء کي یو سړي د بیت المال څخه یو

[٩١] سورة الانفال، الاية: ٥٨.

[٩٢] سورة آل عمران ، الاية: ١٦١.

[٩٣] عن أبي حُمَيد أن رسول الله ﷺ قال: هَدَايا الْعُمَّالِ غُلُولٌ. (المسند امام احمد: ٥/٤٢٤)

شی پټ کړ، (کوم وخت چي مړ سو) رسول الله ﷺ وفرمايل: د جنازې لمونځ مه پر کوئ ستاسو ملگري د الله جل جلاله په لاره کي خيانت کړی دئ.(۹۴)

## (۲۳) لويه گناه: غلا کول

د گناهونو په لړ کي يوه لويه او بده گناه غلا کول دي. دا يوه داسي ناوړه گناه ده چي له امله يې الله جل جلاله ناراضه کېږي او هم ټولنه د فساد او ناآرامۍ پر لوري ځي. دا دومره ستره گناه ده چي الله جل جلاله يې د کوونکي د لاس پرېکولو حکم کړی دئ او فرمايي:

﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوٓا أَيْدِيَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَٰلًا مِّنَ اللَّهِۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٣٨﴾﴾(۹۵)

ژباړه: د غله نارينه او غلې ښځي لاسونه پرېکړئ دا سزا د هغه څه ده، چي دوی يې کسب کړی دئ او خبر تيا ده د الله جل جلاله له لوري څخه او الله جل جلاله ډېر قوی دئ (په تطبيقولو کي د احکامو) او حکمت والا دئ په هر کار کي.

رسول الله ﷺ فرمايلي دي:

هر زنا کوونکی د زنا پر مهال مؤمن نه وي، غل د غلا پر مهال مؤمن نه وي او شراب چيښونکی د شراب چيښول پر مهال مؤمن نه

---

(۹٤) ابن كثير في تفسير آية: ۱٦۱ من آل عمران.

(۹٥) سورة المآئدة، الاية: ۳۸.

وي (يعني د غلا او زنا پر مهال ايمان ځني پورته کيږي)، مګر توبه يې خلاصوي.[96] يعني که توبه وباسي خلاصېدای سی.

د پورتني حديث مطلب دا دئ، چي کوم وخت يو څوک زنا کوي يا غلاکوي ايمان ځني پورته کيږي د مرغه په څېر يې پر سر دريږي، چي د زنا يا غلا څخه فارغه سو بېرته ايمان ورته راسي.

# (۲۴) لويه ګناه: د غلا لپاره لار نيول

## (قطاع الطريق)

د مسلمانانو په وړاندي لوی لاري نيول، مالونه او پيسې ځني اخيستل لويه ګناه ده. د سپېڅلي شريعت د قانون له مخي راسته لاس او چپه پښه پرېکول ورته جزا ټاکل سوې ده.

الله جل جلاله يې اړونده فرمايي:

﴿إِنَّمَا جَزَٰٓؤُا۟ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَسْعَوْنَ فِى ٱلْأَرْضِ فَسَادًا أَن يُقَتَّلُوٓا۟ أَوْ يُصَلَّبُوٓا۟ أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلَٰفٍ أَوْ يُنفَوْا۟ مِنَ ٱلْأَرْضِ ۚ ذَٰلِكَ لَهُمْ خِزْىٌ فِى ٱلدُّنْيَا ۖ وَلَهُمْ فِى ٱلْءَاخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٣٣﴾﴾[97]

ژباړه: باور وکړئ د هغو کسانو سزا چي د الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم (د دوستانو سره) جنګ کوي، په مځکه کي د فساد کولو

[96] عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لا يزنى الزانى حين يزنى وهو مؤمن، ولا يسرق السارق حين يسرق وهو مؤمن، ولا يشرب الخمر حين يشربها وهو مؤمن، والتوبة معروضة بعد. (أخرجه عبد الرزاق: ٤١٦/٧، رقم: ١٣٦٨٦، ومسلم: ٧٧/١، رقم: ٥٧، وأبو داود: ٢٢١/٤، رقم: ٤٦٨٩، والترمذى: ١٥/٥، رقم: ٢٦٢٥)

[97] سورة المآئدة، الاية: ٣٣.

کوښښ کوي (سزا يې دا ده)، چې ووژل سي، يا په دار سي او يا يې رد او بدل لاسونه او پښې پرېکړل سي (يعني راسته لاس او چپه پښه) او يا د مځکي څخه وشړل سي دوی لپاره دغه د دنيا بې عزتي ده (چې وژل يا لاس او پښې پرېکيدل دي) او په آخرت کي ورته لوی عذاب سته.

په پورتني آيت کي د لار نيوونکو لپاره څلور ډوله سزا ښودل سوې ده او د لار نيوونکو ګناه هم څلور ډوله لري؛ ځکه که لار نيوونکو مرګ کړی وي او د غلا وخت يې نه وي پيدا کړی سزا يې مرګ دئ او که يې مرګ کړی وي او غلا يې هم کړې وي سزا يې مرګ ده او په دار به هم ځړول کيږي. او که يې مرګ نه وي کړي غلا يې کړې وي سزا يې د لاس او پښې پرېکېدل دي او که يې نه غلا کړې او نه يې مرګ کړی وي سزا يې د وطن څخه شړل دي.

# (۲۵) لويه ګناه: په ناحقه قسم اخيستل چې په ياد يې هم وي

قسم پردرې (۳) ډوله دئ: يو هغه قسم دئ چې په راتلونکې زمانه کي د يوه کار د کولو يا نه کولو لپاره وکړي، په دغه قسم کي که پر هغه خپله اراده باندي ودرېدئ د قسم څخه خلاص دئ که نه نو کفاره به ورکوي. د مثال په ډول احمد قسم وکړئ چې زه درې ورځي د محمود سره خبري نه کوم، که يې هغه درې ورځي خبری نه وکړې قسم يې پوره کړ هيڅ شی باندي نه سته او که يې په هغه درو ورځو کي خبري وکړې د قسم کفاره به ورکوي.

دوهم هغه قسم دئ، چي په تېره زمانه کي يې يو کار کړی وي خو هېر يې وي قسم باندي واخلي، چي دا کار ما نه دئ کړی په حقيقت کي ده کړی وي هېر يې وي، پر دې قسم باندي هيڅ شی لازم نه دئ.

درېيم ډول قسم دا دئ، چي په تېره زمانه کي يې يو کار کړی وي په ياد يې هم وي قسم باندي واخلي، چي دا کار ما نه دئ کړی يا بله موضوع وي خو دی په خبر وي د خبرتيا سره قسم باندي واخلي، دې قسم ته "يمين غموس" وايي، دومره لويه ګناه يې وکړه چي په کفاره يې غاړی نه خلاصيږی سزا يې آخرت ته پاتيږي، الله جل جلاله فرمايي:

﴿إِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَاَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا اُولٰٓئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ وَلَا يَنْظُرُ اِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيْهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ (٩٨)

ژباړه: باور وکړئ هغه کسان چي د الله جل جلاله سره وعده او قسمونه په لږو پيسو بدلوي، دغه کسانو ته په آخرت کي هيڅ برخه نه سته، د قيامت په ورځ به نه الله جل جلاله خبري ورسره وکړي، نه به د رحمت په نظر ورته وګوري، نه به د دوی پاکي وکړي او دوی ته ډېر سخت عذاب سته.

يعني هغه قسم کوونکي چي په ناحقه قسم اخلي د الله جل جلاله د رحمت او اخروي ګټو څخه چي جنت دئ بې برخي دي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي: يو څوک د يو سړي حق په قسم پرې کړی الله جل جلاله به خامخا دوږخ ورته واجب کړي او جنت به پر حرام کړي.

(٩٨) سورة آل عمران، الاية: ٧٧.

يو چا پوښتنه وکړه: يا رسول الله ﷺ! که څه هم لږ شی وي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: که څه کوچنۍ شنه خاشه وي.[99]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: تر ټولو لوي گناهونه د الله جل جلاله سره شريک نيول دي، د مور او پلار آزار دئ، د مسلمان وژل دي او په ناحقه قسم اخيستل دي.[100]

# (۲۶) لويه گناه: ظلم کول

الله جل جلاله د هري گناه په اړه بنده ته وخت ورکوي يعني ژر عذاب ورباندي نه راولي، مگر د ظلم په کولو سره ډېر ژر په قهر کيږي، الله جل جلاله فرمايي:

﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ غَافِلًا عَمَّا يَعْمَلُ الظّٰلِمُوْنَ ۬ اِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيْهِ الْاَبْصَارُ ﴿۴۲﴾﴾[101]

[99]عن ابي امامة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: من اقتطع حق امرئ مسلم بيمينه فقد أوجب الله له النار وحرم عليه الجنة، فقال رجل: يا رسول الله ﷺ! وإن كان شيئًا يسيراً قال وإن كان قضيبًا من أراك. (أخرجه أحمد: ٢٦٠/٥، رقم: ٢٢٢٩٣، ومسلم: ١٢٢/١، رقم: ١٣٧، والنسائى: ٢٤٦/٨، رقم: ٥٤١٩، وابن ماجه: ٧٧٩/٢، رقم: ٢٣٢٤، والدارمى: ٣٤٥/٢، رقم: ٢٦٠٣، وأبو عوانة: ٤٠/١، رقم: ٨٨، والطبرانى: ٢٧٤/١، رقم: ٧٩٧)

[100]عن عبد الله بن أنيس رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: أكبر الكبائر الإشراك بالله عزوجل، وعقوق الوالدين، واليمين الغموس، وايم الذي نفسي بيده لا يحلف أحد وإن كان على مثل جناح البعوضة إلا كانت نكتة في قلبه إلى يوم القيامة. (أخرجه أحمد: ٤٩٥/٣، رقم: ١٦٠٨٦، والترمذى: ٢٣٦/٥، رقم: ٣٠٢٠، وقال: حسن غريب. وابن حبان: ٣٧٤/١٢، رقم: ٥٥٦٣، والطبرانى فى الأوسط: ٣٠٥/٣، رقم: ٣٢٣٧)

[101]سورة ابراهيم، الاية:٤٢.

ژباړه: گومان مه کوه اې انسانه! چې الله جل جلاله د هغه څه څخه بې خبره دئ چې ظالمان يې کوي، بېشکه الله جل جلاله دوی و هغه ورځي ته ځنډوي چې سترگي د ډېره وهمه روڼي پاتېږي.

رسول الله ﷺ يوه ورځ اصحابو کرامو رضي الله عنهم ته وفرمايل: آيا تاسو خبر ياست چې مفلس څوک دئ؟ اصحابو رضي الله عنهم ورته وويل: په موږ کي مفلس هغه څوک دئ چې پيسې نه لري. رسول الله ﷺ وفرمايل: په حقيقت کي مفلس هغه څوک دئ چې د قيامت په ورځ راسي نېک عملونه، لکه: لمونځ، روژې، زکات او حج ورسره وي، يو بل څوک راسي او ووايي چې ده ما ته ښکنځل کړي دي، يا يې په زنا کوونکي راته ويلي دي، يا يې مال راڅخه خوړلی دئ، يا يې ويني راتوي کړي دي او يا يې وهلی يم، نو د ده نېکۍ هغه (مظلوم) ته ورکول کېږي، که يې نېکۍ خلاصي سوې بيا د مظلوم گناوي را اخيستل کېږي پر ده باندي لوېږي وروسته به په دوزخ کي وغورځول سي.(١٠٢)

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: پر پنځو کسانو باندي د الله جل جلاله غضب دئ، که د الله جل جلاله خوښه سوه پر دې دنيا عذاب ورکوي او که يې خوښه سوه په آخرت کي عذاب ورکوي:

١. لومړی د قوم امير دئ چې خپل حق د قوم څخه اخلي انصاف نه ورسره کوي او نه ظلم ځني پورته کوي.

---

(١٠٢)وعن أبي هُريرةَ رضي الله عنه: أنَّ رسولَ الله ﷺ قالَ: أتدرونَ مَنِ المُفْلِسُ؟ قالوا: المفْلسُ فِينَا مَنْ لا دِرهَمَ لَهُ ولا مَتَاع، فَقَالَ: إنَّ المُفْلسَ مِنْ أُمَّتي مَنْ يأتي يَومَ القيامَةِ بصلاةٍ وصيامٍ وزَكاةٍ، ويأتي وقَدْ شَتَمَ هَذَا، وقَذَفَ هَذَا، وَأَكَلَ مالَ هَذَا، وسَفَكَ دَمَ هَذَا، وَضَرَبَ هَذَا، فيُعْطَى هَذَا مِنْ حَسَنَاتِهِ، وهَذَا مِنْ حَسناتهِ، فإنْ فَنِيَتْ حَسَناتُه قَبْلَ أنْ يُقضى مَا عَلَيهِ، أُخِذَ منْ خَطَايَاهُم فَطُرِحَتْ عَلَيهِ، ثُمَّ طُرِحَ في النَّارِ. (أخرجه مسلم: ١٨/٨ ( ٢٥٨١ ) ( ٥٩))

۲. دوهم د قوم مشر دئ چي قوم يې اطاعت کوي خو دی د کمزوري او زورور ترمنځ فرق کوي.
۳. درېيم هغه سړی دئ چي خپله کورنۍ او اولاد د الله جل جلاله د اطاعت لوري ته نه امر کوي او د دين تعليم نه ورکوي.
۴. څلورم هغه سړی دئ چي مزدور ونيسي کار پوره ځني غواړي او مزدوري پوره نه ورکوي.
۵. پنځم هغه سړی دئ چي د خپلي ښځي په حق کي ظلم کوي.[۱۰۳]

رسول الله ﷺ فرمايي: که څوک يوه لوېښت مځکه د چا په ظلم واخلي د قيامت په ورځ به دغه يوه لوېښت مځکه د اوياوو مځکو په تول طوق ځني جوړ سي او ده ته به ورپه غاړه سي.[۱۰۴]

## (۲۷) لويه ګناه:
## د الله جل جلاله د رحمت څخه نااميدي

په يوه حديث کي راغلي دي، چي الله جل جلاله سل رحمته لري، هر رحمت يې دومره لوي دئ لکه د مځکي او آسمان منځ د دغه سلو رحمتو څخه يې يو رحمت په ټولو انسانانو، پېريانانو او حيوانانو کې

---

[۱۰۳] و روي عن النبي ﷺ أنه قال: خمسة غضب الله عليهم إن شاء أمضى غضبه عليهم في الدنيا و إلا أمر بهم في الآخرة إلى النار: أمير قوم يأخذ حقه من رعيته و لا ينصفهم من نفسه و لا يدفع الظلم عنهم، و زعيم قوم يطيعونه و لا يساوي بين القوي و الضعيف و يتكلم بالهوى، و رجل لا يأمر أهله و ولده بطاعة الله و لا يعلمهم أمر دينهم، و رجل استأجر أجيرا فاستوفى منه العمل و لم يوفه أجرته، و رجل ظلم امرأة صداقها. (كتاب الكبائر، ص: ۱۱۹)

[۱۰۴] وعن عائشة رضي الله عنها: أن رَسُول الله ﷺ قَالَ: مَنْ ظَلَمَ قيدَ شِبرٍ مِنَ الأَرْضِ، طُوِّقَهُ مِنْ سبْعِ أَرَضينَ. (أخرجه البخاري: ۲۲۳/۵ ( ۲٤٠۲ )، ومسلم: ۵۸/۱ ( ٦٦ ) ( ۱۱۹ ) و( ۱۲۰ ))

شیندلی دئ، چې دوی په خپلو منځو کې محبت او رحم سره کوي او یا دوی پر خپلو اولادو باندي باندي رحم کوي او یا پر قریبانو باندي رحم کوي.[(١٠٥)]

که په پورتني حدیث کي لږ فکر وسي چې د الله ﷻ دومره رحمتونه دي، چې یو یې دومره زیات دئ چې د ټولي دنیا د پلرونو، میندو او عامو او خاصو، پیرانانو او حیوانانو د رحم سره برابر دي، نو ټوله به څومره وي حال دا چې که د یوه پلار او یا یوې مور رحم ته سړی ځیر سي عقل عاجز ورته پاتېږي او که د ټولو میندو او پلرونو محبت او رحم سره یوځای سي نو بیا به څومره زیات سي؟ او که سل برابره سي بیا به څومره سي؟ نو د دومره لوي رحم څخه ناهیلي کول کبیره گناه ده، ځکه الله ﷻ فرمایي:

﴿إِنَّهُۥ لَا يَاْيْـَٔسُ مِن رَّوْحِ ٱللَّهِ إِلَّا ٱلْقَوْمُ ٱلْكَٰفِرُونَ ۝٨٧﴾[(١٠٦)]

ژباړه: باور وکړئ! د الله ﷻ د رحمت څخه یوازي کافران ناامیده کېږي (بل څوک نه ځني ناهیلی کېږي).

بله خبره لا دا ده، چې الله ﷻ په ښکاره ټولو انسانانو ته وعده ورکړې ده، چې د شرک پرته زه هره گناه بخښم چا ته چې مي خوښه سي، ځکه الله ﷻ فرمایي:

---

(١٠٥) حدثنا أبو كريب وأحمد بن سنان قالا: ثنا أبو معاوية عن الأعمش عن أبي صالح عن أبي سعيد قال: قال رسول الله ﷺ: خلق الله عزوجل يوم خلق السموات والأرض مائة رحمة، فجعل في الأرض منها رحمة فبها تعطف الوالدة على ولدها، والبهائم بعضها على بعض والطير، وأخر تسعة وتسعين إلى يوم القيامة فإذا كان يوم القيامة أكملها الله بهذه الرحمة. (أخرجه البخاري - في الرقاق باب: ١٩، ومسلم - في توبه حديث: ١٨ ـ ٢١، والترمذي - في الدعوات باب: ٩٩، وابن ماجة - في الزهد باب:٣٥)

(١٠٦) سورة يوسف، الاية: ٨٧ .

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ﴾ [١٠٧]

ژباړه: دا خبره يقيني ده چې الله ﷻ هغه څوک نه بخښي، چې د الله ﷻ سره شريک ونيسي نوره هره ګناه بخښي چا ته چې يې خوښه سي.

په يو حديث کې راغلي دي، چې الله ﷻ فرمايي: اې انسانه! که ته يو څه زما څخه وغواړې او ما ته دعا وکړې زه ستا ټولي ګناوي بخښم او زه يې هيڅ پروا نه لرم. اې انسانه! که ستا ګناهونه دومره زيات سي چې د آسمان تر کنارو پوري ورسېږي او بيا زما څخه بخښنه وغواړې زه بخښنه درته کوم. اې انسانه! که ټوله مځکه ستا په ګناهونو باندي ډکه سي او بيا ته زما و خوا ته راسې (بخښنه راڅخه غواړې) او شريک دي زما سره نه وي نيولي زه بخښنه درته کوم. [١٠٨]

حاصل دا چې که د انسان څخه هر څومره ګناهونه وسي بيا به هم د الله جل جلاله د رحمت څخه نه نا امېده کيږي.

---

[١٠٧] سورة النساء، الاية: ٤٨.

[١٠٨] عن انس رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: قال الله: يا ابن آدم! إنك ما دعوتنى ورجوتنى غفرت لك ما كان منك ولا أبالى. يا ابن آدم! لو بلغت ذنوبك عنان السماء ثم استغفرتنى غفرت لك ولا أبالى. يا ابن آدم! لو أنك أتيتنى بقراب الأرض خطايا ثم لقيتنى لا تشرك بى شيئا لأتيتك بقرابها مغفرة. (أخرجه الترمذى: ٥٤٨/٥، رقم: ٣٥٤٠، وقال: غريب. والضياء: ٣٩٩/٤، رقم: ١٥٧١)

# (۲۸) لويه ګناه: حرام خوړل

الله جل جلاله فرمايلي دي:

﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ﴾[۱۰۹]

تاسو په خپلو منځو کې مالونه په باطله طريقه مه خورئ.

يعني ځيني ستاسو دي د ځينو نورو څخه په ناروا طريقه مال نه خوري، مال په باطله طريقه سره خوړل پر دوه (۲) ډوله دي: يو ډول يې دا دئ، چې په ظلم، دوکه، خيانت او يا په غلاسره د يو چا مال وخوري. دوهم ډول يې دا دئ، چې په ايله توب يا په بازۍ سره د يو چا مال وخوري لکه قمار يا داسې نور، دغه دواړه ډولونه باطل دي الله جل جلاله يې منعه کړې ده.

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي: ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل: يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! ما ته دعا وکړه چې الله جل جلاله مې داسې څوک جوړکړي چې دعا مې قبليږي. رسول الله صلى الله عليه وسلم راته وفرمايل: خپل کسب دې د حرامو څخه پاک کړه دعا دې قبليږي. هر سړی چې يوه ګوله حرام شی خولې ته پورته کړي څلوېښت ورځې يې دعا نه قبليږي.[۱۱۰]

---

[۱۰۹] سورة البقرة، الاية: ۱۸۸.

[۱۱۰] وروى أبان بن أبي عياش عن أنس قال: قلت: يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! إجعلني مستجاب الدعوة. قال: يا أنس! أطب كسبك تستجاب دعوتك فإن الرجل ليرفع إلى فيه اللقمة من حرام فلا تستجاب له دعوته أربعين يوما. (الترغيب والترهيب، ج: ۲، ص: ۴۰، باب الترهيب من أكل الحرام.

په يوه روايت کي راغلي دي: څوک چي د دې پروا نه کوي چي پيسې مي د کومي خوا راځي (يعني حلالي دي که حرامي)؟ الله جَلَّ جَلَالُهُ د ده پروا نه کوي چي د کومي دروازې څخه دوږخ ته ننوځي.[111]

حضرت ابوهريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي: که د يو چا په خوله کي خاوري وي تر دې ښه دي چي خولې ته حرام وړي.[112]

# (۲۹) لويه ګناه: ځان خپله وژل

الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي:

﴿وَلَا تَقۡتُلُوٓاْ أَنفُسَكُمۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُمۡ رَحِيمٗا ﴿٢٩﴾ وَمَن يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ عُدۡوَٰنٗا وَظُلۡمٗا فَسَوۡفَ نُصۡلِيهِ نَارٗاۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرًا ﴿٣٠﴾﴾[113]

ژباړه: تاسو په خپله خپل ځانونه مه وژنئ، بېشکه الله پاک پر تاسو ډېر مهربان دئ. که چا دغه کار وکړئ (يعني ځان يې په خپله مړ کړئ) ژر دئ چي موږ به يې اور ته واچوو او دغه کار الله جَلَّ جَلَالُهُ ته ډېر اسانه دئ.

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي: چا که ځان په اوسپنه مړ کړئ هغه اوسپنه به يې په لاس کي وي ځان به په دوږخ کي په وهي او همېشه به په دوږخ کي وي. که چا ځان په زهرو مړ کړ په دوږخ کي به د هغه زهرو

---

[111] کنز العمال، رقم: ۹۲۷۱.

[112] شعب الايمان برقم: ۵۳۷۹.

[113] سورة النساء، الايتان: ۲۹، ۳۰.

عذاب باندی تېرېږي او همېشه به په دوږخ کي وي. که چا ځان په خپله د غره څخه راوچاوه مړ سو په دوږخ کي به د غره څخه رالوېږي او همېشه به په دوږخ کي وي. (۱۱۴)

**يادونه:**

دا خبره دي ياده وي چي ځان وژنه او استشهاد فرق لري، دا کوم عذابونه چي بيان سوي دي دا د ځان وژني لپاره دي، ځان وژنه دې ته واي چي څوک د کوم مشکل په وجه د ژوند څخه ستړي وي ځان ووژني او که څوک د الهي دين لپاره ځان شهيد وي دا حکم بيا بېل دئ.

## (۳۰) لويه ګناه: درواغ ويل

الله جل جلاله د درواغو په اړه داسي فرمايلي دي:

﴿فَنَجْعَلْ لَّعْنَتَ اللّٰهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ ۝٦١﴾ (۱۱۵)

موږ به وګرځو لعنت د الله پاک پر درواغ ويونکو باندي.

په بل ځای کي الله جل جلاله فرمايي:

﴿قُتِلَ الْخَرّٰصُوْنَ ۝١٠﴾ (۱۱۶)

---

(١١٤) عن أبي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من تحسى سما فقتل نفسه فهو يتحساه في نار جهنم خالدا مخلدا فيها أبدا، ومن قتل نفسه بحديدة فحديدته في يده يتوجأ بها في بطنه في نار جهنم خالدا مخلدا فيها أبدا، ومن تردى من جبل فقتل نفسه فهو يتردى في نار جهنم خالدا مخلدا فيها أبدا. (ابن حنبل في مسنده، ج:٢، ص: ٤٧٨، ح: ١٠١٩٨)

(١١٥) سورة آل عمران، الاية: ٦١.

(١١٦) سورة الذاريات، الاية:١٠.

وژل سوي دي (يعني هلاک سوي دي) درواغ ويونکي.

رسول اللهﷺ فرمايي: باور وکړئ! رښتيا ويل ويونکی پر نېکه لار روانه وي او نېکه لار تلونکی جنت ته بيايي، همېشه چي يو څوک رښتيا وايي او د رښتيا په لټه کي وي د الله جل جلاله په نزد به "صديق" وليکل سي (چي ډېره لوړه مرتبه ده). باور وکړئ! درواغ ويل ويونکی د فسق پر لار بيايي او د فسق لار تلونکی دوږخ ته بيايي او همېشه چي يو څوک درواغ وايي او د درواغو په لټه کي وي د الله جل جلاله په نزد به "کذاب" وليکل سي (چي ډېره بده مرتبه ده).[117]

رسول اللهﷺ فرمايي: د منافق درې (۳) علامي دي که څه هم لمونځ کوي او روژه نيسي او دا يې ګومان وي چي زه مسلمان يم (خو بيا هم منافق دئ، لومړی دا چي:) کوم وخت خبري کوي درواغ وايي، (دوهم دا چي:) وعده وکړي په وعده وفا نه کوي، (درېيم دا چي:) امانت ورته کښېږدي خيانت پکښي کوي.[118]

رسول اللهﷺ فرمايلي دي: څلور شيان دي په چا کي که موجود سوه خالص منافق دئ، که په چا کي يوه موجود سوه يوه علامه د منافق پکښې ده تر هغه وخته چي دغه خصلت پرېږدي، (لومړی دا چي:) کوم وخت امانت ورته کښېږدي خيانت پکښي کوي، (دوهم دا چي:) خبري کوي دروغ وايي، (درېيم دا چي:) وعده

(۱۱۷) عن عبد الله بن مسعودرضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: إن الصدق يهدى إلى البر وإن البر يهدى إلى الجنة، وإن الرجل ليصدق حتى يكتب صديقا. وإن الكذب يهدى إلى الفجور وإن الفجور يهدى إلى النار، وإن الرجل ليكذب حتى يكتب كذابا. مسلم في صحيحه، ج: ٤، ص: ٢٠١٣، ح:٢٦٠٧)

(۱۱۸)وعن أَبي هريرة رضي الله عنه: أن رَسُول الله ﷺقالَ: آيَةُ المُنافقِ ثلاثٌ: إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ، وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ. (أخرجه البخاري: ١٥/١ ( ٣٣ )، ومسلم: ٥٦/١ ( ٥٩ ) ( ١٠٧ ) و (١٠٩ ))

وکړي په وعده وفا نه کوي، (څلورم دا چې:) جنګ کوي بښکنځل کوي.[119]

رسول الله ﷺ درې ځلي د هغه چا لپاره د هلاکت ښرا کړې ده، چي په دې مقصد دروا غ خبري کوی چي خلګ باندي وخاندي.[120]

**یادونه:**

رسول الله ﷺ په دې ځای کي درواغجن او ټوکي کوونکی دواړه بد ښوولي دي، بدبختانه زموږ په ټولنه کي خلګ ډېر کوښښ کوي چي داسي خبري وکړي تر څو خلګ باندي وخاندي.

## (۳۱) لویه ګناه: په قضا کولو کي خیانت کول (خائن قاضي)

زیات وختونه داسي وي چي قاضي د خلکو په منځ کي صحیح فیصله ځکه نه وکړي چي رشوت واخلي او یا هم د واسطې تر تاثیر لاندي راسي، حال دا چي هر قاضي چي فیصله صحیح و نه کړي الهي قانون یې تر پښو لاندي او هر څوک چي په هغه طریقه پرېکړه نه کوي کومه چي الله جل جلاله رالیږلې ده، الله جل جلاله کافر نومولی دئ او فرمایي:

﴿وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿٤٤﴾﴾[121]

---

[119] وعن عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما: أنَّ رسول الله ﷺ قَالَ: أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقاً خَالِصاً، وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتَّى يَدَعَهَا: إِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ، وَإِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ، وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ. (أخرجه البخاري: ١٥/١ ( ٣٤ )، ومسلم: ٥٦/١ ( ٥٨ ) ( ١٠٦ ).

[120] عن بهز بن حكيم عن أبيه عن جده قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: إن الذي يحدث الناس فيكذب ليضحك به القوم ويل له ويل له. (الطبراني في معجمه الكبير، ج: ١٩، ص: ٤٠٤، ح: ٩٥٢.

ژباړه: څوک چې په الهي قانون فیصله نه کوي نو دا کسان د شک وتلي کافران دي.

په بل ځای کې الله جَلَّ جَلَالُهُ داسې کس ظالم ویلې دي او فرمایي:

﴿وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿٤٥﴾﴾ (۱۲۲)

ژباړه: څوک چې په الهي قانون فیصله نه کوي نو دا کسان د شک وتلي ظالمان دي.

په بل ځای کې الله جَلَّ جَلَالُهُ په فاسقانو سره ورته ویلې دي او فرمایلي یې دي:

﴿وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿٤٧﴾﴾ (۱۲۳)

ژباړه: څوک چې په الهي قانون فیصله نه کوي نو دا کسان د شک وتلي فاسقان دي.

د هغو قاضیانو به څه حال وي چې رشوت ور نه کړې ښېخي فیصله نه کوي؟ تا هم دې ته مجبوره کوي چې رشوت ورکړې او د ځان لپاره هم دا لاره خوښوي چې رشوت واخلي او غلطه فیصله وکړي. (العیاذبالله)

رسول الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمایلي دي: الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه قاضي لمونځ نه قبلوي چې صحیح فیصله نه کوي. (۱۲۴)

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي: قاضیا ن درې (۳) دي: یو قاضي په جنت کې دئ او دوه قاضیان په دوږخ کې دي؛ هغه قاضي چې په حق

(۱۲۱) سورة المائدة، الاية: ۴۴.

(۱۲۲) سورة المائدة، الاية: ۴۵.

(۱۲۳) سورة المائدة، الاية: ۴۷.

(۱۲۴) عن طلحة بن عبيد الله قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لا يقبل الله صلاة إمام حكم بغير ما أنزل الله. (أخرجه الحاكم: ٤/١٠٠، رقم: ٧٠٠٨، وقال: صحيح الإسناد)

پوهېږي او په حق فیصله وکړي دا قاضي په جنت کي دئ. هغه قاضي چي په حق پوهېږي قصداً تر حق تېر سي په ناحقه فیصله وکړي دا قاضي په دوږخ کي دئ او هغه قاضي چي په حق نه پوهېږي په ناحقه فیصله وکړي دا هم په دوږخ کي دئ.(۱۲۵)

## (۳۲) لویه گناه: رشوت اخیستل

الله جَلَّجَلَالُهُ فرمايي:

﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ وَتُدْلُوا۟ بِهَآ إِلَى ٱلْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا۟ فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ بِٱلْإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ۝١٨٨﴾(۱۲۶)

ژباړه: تاسو په خپلو منځو کي خپل مالونه په باطله طریقه مه خورئ او تاسو دغه مالونه تر حاکمانو مه رسوئ (یعني په رشوت کي يې مه ورکوئ) د دې لپاره چي ستاسو يوه ډله د خلکو يو څه مالونه (د واکمنانو په زور) په ناحقه وخوري او تاسو هم پوهېږئ.

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي: د الله جَلَّجَلَالُهُ لعنت دي پر رشوت ورکوونکي او پر رشوت اخیستونکي وي او پر هغه چا دي لعنت وي

---

(۱۲۵) عن سليمان بن بريدة عن أبيه أن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال: القضاة ثلاثة: قاضيان في النار وقاض في الجنة؛ قاض قضى بغير الحق وهو يعلم فهو في النار، وقاض قضى بغير الحق وهو لا يعلم فهو في النار، وقاض قضى بالحق وهو يعلم فهو في الجنة. (الطبراني في معجمه الكبير، ج: ۲، ص: ۲۱، ح: ۱۱۵٦)

(۱۲٦) سورة البقرة، الاية: ۱۸۸ .

چې د رشوت ورکوونکي او اخیستونکي ترمنځ جوړ جاړی راولي.[١٢٧]

پر رشوت اخیستونکي رسول الله ﷺ لعنت ویلی دئ یعني رشوت اخیستونکی هیڅ وخت د لعنت څخه نه خلاصیږي او که چا د خپل ځان، اولاد او یا مال د حفاظت لپاره رشوت ورکړئ جائز کار دئ، البته اخیستونکي ته هر وخت حرام دئ که په حق فیصله وکړي او که په ناحقه.

## (٣٣) لویه ګناه:

## ښځه چې د نارینه په ډول ځان جوړ کړي او نارینه چې د ښځې په ډول ځان جوړ کړي

رسول الله ﷺ فرمایي: د الله جل جلاله لعنت دي پر هغو ښځو وي چې د نارینه سره ځان مشابه کوي او د الله جل جلاله لعنت دي پر هغو نارینوو وي چې د ښځو سره ځان مشابه کوي.[١٢٨]

لکه چې ښځه د سر وربښتان دومره لنډ کړي لکه د نارینه او یا نارینه بږیره وخروي د ښځې په څېر ځان جوړ کړي او داسې نور...

---

[١٢٧] عن النبی ﷺ: أنه لعن الراشی والمرتشی، والمعزی الذی یسعی بینهما. (أخرجه أیضًا عبد الرزاق: ١٤٨/٨، رقم: ١٤٦٦٩، وابن الجعد: ٤٠٦/١، رقم: ٢٧٦٧، وأحمد: ١٦٤/٢، رقم: ٦٥٣٢، وأبو داود: ٣٠٠/٣، رقم: ٣٥٨٠، والترمذی: ٦٢٣/٣، رقم: ١٣٣٧، وابن ماجه: ٧٧٥/٢ ، رقم: ٢٣١٣)

[١٢٨] عن ابن عباس رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: لعن الله المتشبهات من النساء بالرجال والمتشبهین من الرجال بالنساء. (أخرجه الطبرانی: ٢٠٤/١١، رقم: ١١٥٠٢، وأحمد: ٣٣٠/١ ، رقم: ٣٠٦٠، وأبو داود: ٦٠/٤، رقم ٤٠٩٧، والترمذی: ١٠٥/٥، رقم: ٢٧٤٨، وقال: حسن صحیح . وابن ماجه: ٦١٤/١، رقم: ١٩٠٤)

رسول الله ﷺ فرمایلي دي: د الله جل جلاله لعنت دي پر هغو ښځو وي چي د نارینوو جامې اغوندي او د الله جل جلاله لعنت دي پر هغو نارینوو وي چي د ښځو جامې اغوندي.(١٢٩)

رسول الله ﷺ فرمایلي دي: د الله جل جلاله لعنت دي پر هغو نارینوو وي چي د ښځي په ډول ځان جوړوي او د الله جل جلاله لعنت دي پر هغو ښځو وي چي د نارینوو سره په جامو، خبرو کي ځان مشابه کوي.(١٣٠)

# (٣٤) لویه ګناه: د بولو څخه ځان نه ساتل

زیات وخت ځیني خلک د قضاء حاجت پر مهال د بولو څخه د حفاظت پروا نه کوي ځکه نو پر جامو یې د بولو څاڅکي لګېدلي وي، حال دا چي دا د بولو څاڅکي د ناروغیو تر څنګ چي انسان ته یې پېښنوي لویه ګناه هم ده، ځکه الله جل جلاله د جامو د نظافت حکم کوي او فرمایي:

﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ﴾(١٣١)

او خپلي جامې پاکي کړه.

رسول الله ﷺ فرمایلي دي: د بولو څخه ځان وساتئ ځکه د قبر عام عذاب د بولو څخه وي.(١٣٢)

---

(١٢٩) عن أبی هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: لعن الله الرجل يلبس لبسة المرأة والمرأة تلبس لبسة الرجل. (أخرجه أبو داود: ٦٠/٤، رقم: ٤٠٩٨، والحاكم: ٢١٥/٤، رقم: ٧٤١٥، وقال: صحيح على شرط مسلم)

(١٣٠) عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: قال رسول الله ﷺ: لعن الله المخنثين من الرجال والمترجلات من النساء. (أخرجه أبوداود: ٢٨٣/٤، رقم: ٤٩٣٠، والترمذی: ١٠٦/٥، رقم:٢٧٨٥، وقال: حسن)

(١٣١) سورة مدثر ،الاية: ٤

ابن عباس رضي الله عنه فرمايلي دي: يوه ورځ رسول الله ﷺ د دوو قبرونو سره تېرېدئ و يې وفرمايل: د دغه دوو قبرونو خلګ په عذاب دي؛ دا يوه چغلګري کول او دا بل د بولو څخه ځان نه ساتئ. (١٣٣)

# (٣٥) لويه ګناه: په عبادت کې ريا کول

الله جل جلاله فرمايلي دي:

﴿فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ ۝ الَّذِينَ هُمْ عَن صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ ۝ الَّذِينَ هُمْ يُرَاءُونَ ۝ وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ ۝﴾ (١٣٤)

ژباړه: هلاکت يا د "ويل" شېله دي وي هغو لمونځ کوونکو ته چې د خپل لمانځه هېروونکي وي او هغو کسانو ته چې ريا کوونکي وي او (د ورکړې په وخت کې) ډېر لږ شی منعه کوي.

په بل ځای کې الله جل جلاله فرمايي:

﴿فَمَن كَانَ يَرْجُوا لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا ۝﴾ (١٣٥)

---

(١٣٢) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: اِسْتَنْزِهُوا مِنَ الْبَوْلِ فَإِنَّ عَامَّةَ عَذَابِ الْقَبْرِ مِنْهُ. (رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيّ صحيح. رواه الدارقطني: ١٢٨ /٧)

(١٣٣) عن ابن عباس قال: مر النبى ﷺ على قبرين فقال: إنهما ليعذبان وما يعذبان من كبير، ثم قال : بلى أما أحدهما فكان يسعى بالنميمة، وأما أحدهما فكان لا يستتر من بوله. قال: ثم أخذ عودًا رطبًا فكسره باثنتين ثم غرز كل واحد منهما على قبر ثم قال:... (فذكره أخرجه البخارى: ١، ٤٦٤، رقم: ١٣١٢، ومسلم: ٢٤٠/١، رقم: ٢٩٢)

(١٣٤) سورة الماعون، الايات: ٤ - ٧.

(١٣٥) سورة الكهف، الاية: ١١٠.

ژباړه: څوک چې د الله جل جلاله د ملاقات امېد لري نو نېک عمل دي وکړي او د خپل رب جل جلاله په عبادت کي دي څوک نه شريکوي. يعني عبادت دي د خلګو لپاره نه کوي، چې ريا ورته وايي.

په بل ځای کي الله جل جلاله فرمايي:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُبْطِلُوا۟ صَدَقَٰتِكُم بِٱلْمَنِّ وَٱلْأَذَىٰ كَٱلَّذِى يُنفِقُ مَالَهُۥ رِئَآءَ ٱلنَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ﴾[136]

ژباړه: اې مؤمنانو! خپل خيراتونه په احسان اچولو او ضرر رسولو سره مه خرابوئ لکه هغه څوک چې مال خيراتوی و خلکو ته د ځان ښووني لپاره (يعنی د ريا لپاره عبادت مه کوئ ځکه ريا عبادت باطلوي ثواب يې نه پاتېږي).

رسول الله ﷺ مبارکو اصحابانو ته وفرمايل: زه پر تاسو باندي د کوچني شرک کولو څخه زيات بېرېږم يعني په نيکو عملونو کي د ريا کولو څخه. د قيامت په ورځ چي الله ﷺ خلګو ته د نيکو عملونو مزدوري ورکوي، ريا کوونکو ته به ووايي: ولاړسئ! ستاسو لپاره مزدوري نه سته، هغه کسانو ته ورسئ چي د هغو لپاره مو نېک کارونه کول. يعني د نامه لپاره مو کارونه کول چي خلګ مو په ښه نامه ياد کړي نو هغو خلګو ته ورسئ چي د هغو لپاره مو کار کاوه هغه دي مزدوري درکړي.[137]

ابي سعيد رضي الله عنه فرمايي: ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي چي داسي يې وفرمايل: کله چي د حشر پر ميدان باندي اولين او آخرين

---

[136] سورة البقرة، الاية:٢٦۴.

[137] إِنَّ أَخْوَفَ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمْ الشِّرْكُ الْأَصْغَرُ الرِّيَاءُ، يَقُولُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِذَا جَزَى النَّاسَ بِأَعْمَالِهِمْ: اذْهَبُوا إِلَى الَّذِينَ كُنْتُمْ تُرَاءُونَ فِي الدُّنْيَا أُنْظُرُوا هَلْ تَجِدُونَ عِنْدَهُمْ جَزَاءً. (أخرجه الطبرانى: ٢٥٣/٤، رقم: ٤٣٠١. قال الهيثمى: ٢٢٢/١٠ رجاله رجال الصحيح، غير عبد الله بن شبيب بن خالد، وهو ثقة)

ټول خلک جمع سي نو يو آواز کوونکی به آواز وکړي: چا چې عمل د چا لپاره کړی دئ د هغه څخه دي ثواب وغواړي، الله جَلَّ جَلَالُهُ د شريکانو حاجت نه لري. يعني دا چې که چا عمل و خلکو ته د ځان ښودني لپاره کړی وي نو د خلکو څخه دي د ثواب غوښتنه وکړي د ده ثواب د الله جَلَّ جَلَالُهُ سره نه سته. (١٣٨)

د حضرت ابوهريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دئ، چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي: د قيامت په ورځ اول سړی چې د اعمالو فيصله يې کېږي شهيد دئ. کوم وخت چې شهيد راسي معرفي به سي بيا به پوښتنه ځني وسي، چې تا کوم نېک عمل کړی دئ؟ دی به ووايي: ما د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لار کي جنګ کړی دئ تر داسي اندازې چې شهيد سوم. په جواب کي به ورته ويل سي: درواغ وايې تا د دې لپاره جهاد کړی دئ چې خلک غښتلی درته ووايي، تا ته په دنيا کي غښتلی وويل سوه د الله پاک لپاره دی جهاد نه کاوه نو الله پاک تا ته ثواب نه درکوي. بيا به دغه سړی پړمخ په دوږخ کي وغورځول سي. بيا به بل سړی راسي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ډېر مالونه ورکړي وي دی به هم معرفي سي او ورته و به ويل سي: تا په دنيا کي کوم نېک کار کړی دئ؟ دی به ووايي: ما هيڅ نېکه لار نه ده پرې ايښې مګر مالونه مي پکښي خرڅ کړي دي. ورته و به ويل سي: درواغ وايې تا د دې لپاره خيراتونه کول چې تا ته سخي وويل سي د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره دي خيراتونه نه کول. بيا به پړمخ په دوږخ کي وغورځول سي. بل سړی به راسي چې علم يې حاصل کړی وي او نورو ته يې ښوولي وي او قرآن به يې ويلی وي پوښتنه به ځني وسي،

(١٣٨) عن أبي سعيد بن أبي فضالة الأنصاري وكان من الصحابة قال: سمعت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول: إذا جمع اللهُ الأولين والآخرين يومَ القيامةِ ليوم لاريبَ فيه نادى مُنادٍ: من كان أشرك فى عملٍ عَمِله لله أَحَدًا فَلْيَطْلُبْ ثَوَابَهُ من عندِه فإن اللهَ أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عنِ الشِّرْكِ. (أخرجه أحمد: ٣، ٤٦٦، رقم: ١٥٨٧٦، والترمذى: ٣١٤/٥ ، رقم: ٣١٥٤، وقال: حسن غريب. وابن ماجه)

چي تا په دې علم کي کوم نېک کار کړی دئ؟ دی به ووايي: ما علم حاصل کړی دئ نورو ته مي ښوولی دئ او قرآن مي تلاوت کړی دئ. ورته و به ويل سي: دروا غ وايې تا د دې لپاره علم حاصل کړی وو چي تا ته عالم وويل سي د الله جل جلاله لپاره دي نه وو حاصل کړی. دی به هم پړمخ په دوزخ کي وغورځول سي.(۱۳۹)

## (۳٦) لويه ګناه:

## د دنيا لپاره علم کول او علم پټول

ځوک چي د دنيا لپاره علم حاصلوی يعني د دې لپاره چي ما ته ښه عالم وويل سي يا يې دنيوي ګټه لاسته راوړل مطلب وي، داسي علم حاصلول هيڅ ثواب نه لري بلکي لويه ګناه ده لکه مخکی چي د رسول الله ﷺ حديث ذکر سو، چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: د قيامت په ورځ اول سړی ،چي د اعمالو فيصله يې کېږي شهيد دئ. کوم وخت چي شهيد راسي معرفي به سي بيا به پوښتنه ځني وسي، چي تا کوم نېک عمل کړی دئ؟ دی به ووايي: ما د الله جل جلاله په لار کي جنګ کړی دئ تر داسي اندازې چي شهيد سوم. په جواب کي به ورته

(۱۳۹)عن ابي هريرة قال: قال رسول الله ﷺ: إن أول الناس يقضى يوم القيامة عليه رجل استشهد فأتى به فعرفه نعمته فعرفها، قال: فما عملت فيها ؟ قال: قاتلت فيك حتى استشهدت. قال: كذبت ولكنك قاتلت ليقال جرىء فقد قيل ثم أمر به فسحب على وجهه حتى ألقى فى النار. ورجل تعلم العلم وعلمه وقرأ القرآن فأتى به فعرفه نعمه فعرفها، قال: فما عملت فيها؟ قال: تعلمت العلم وعلمته وقرأت فيك القرآن. قال: كذبت ولكنك تعلمت العلم ليقال عالم وقرأت القرآن ليقال هو قارئ فقد قيل ثم أمر به فسحب على وجهه حتى ألقى فى النار. ورجل وسع الله عليه وأعطاه من أصناف المال كله فأتى به فعرفه نعمه فعرفها، قال: فما عملت فيها؟ قال: ما تركت من سبيل تحب أن ينفق فيها إلا أنفقت فيها لك. قال: كذبت ولكنك فعلت ليقال هو جواد فقد قيل ثم أمر به فسحب على وجهه ثم ألقى فى النار. (أخرجه أحمد: ۳۲۱/۲، رقم: ۸۲٦۰، ومسلم: ۱۵۱۳/۳، رقم: ۱۹۰۵، والنسائى: ۲۳/٦، رقم: ۳۱۳۷)

وويل سي: درواغ وايې تا د دې لپاره جهاد کړی دئ چي خلک غښتلی درته وو ايي تا ته په دنيا کي غښتلی وويل سوه د الله پاک لپاره دی جهاد نه کاوه نو الله پاک تا ته ثواب نه درکوي. بيا به دغه سړی پړمخ په دوږخ کي وغورځول سي...

بل سړی به راسي چي علم يې حاصل کړی وي او نورو ته يې ښوولی وي او قرآن به يې ويلی وي پوښتنه به ځني وسي، چي تا په دې علم کي کوم نېک کار کړی دئ؟ دی به وو ايي: ما علم حاصل کړی دئ نورو ته مي ښوولی دئ او قرآن مي تلاوت کړی دئ. ورته و به ويل سي: درواغ وايې تا د دې لپاره علم حاصل کړی وو چي تا ته عالم وويل سي د الله جل جلاله لپاره دي نه ووحاصل کړی دی به هم پړمخ په دوږخ کي وغورځول سي.(١۴٠)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي: که چا د دې لپاره علم حاصل کړ چي د دنيا کومه ګټه لاسته په راوړي د جنت بوی به يې هم تر پزه نه سي.(١۴١)

همدا ډول علم پټول يعني د چا چي يو څه په دين کي زده وي د بل چا ورته اړتيا وي دی يې نه ورښيي لويه ګناه ده، ځکه الله جل جلاله فرمايي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَآ أَنزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَٰتِ وَالْهُدَىٰ مِنۢ بَعْدِ مَا بَيَّنَّٰهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَٰبِ ۙ أُولَٰٓئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللَّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللَّٰعِنُونَ

---

(١٤٠)عن ابي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: إن أول الناس يقضى يوم القيامة... (أخرجه أحمد: ٢، ٣٢١، رقم: ٨٢٦٠، ومسلم: ١٥١٣/٣، رقم: ١٩٠٥، والنسائى: ٢٣/٦، رقم: ٣١٣٧)

(١٤١)عن ابي هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من تعلم علمًا مما يبتغى به وجه الله لا يتعلمه إلا ليصيب به عرضًا من الدنيا لم يجد عرف الجنة يوم القيامة. (أخرجه أحمد: ٣٣٨/٢، رقم: ٨٤٣٨، وأبو داود: ٣٢٣/٣، رقم: ٣٦٦٤، وابن ماجه: ٩٢/١، رقم: ٢٥٢، والحاكم: ٦٠/١، رقم: ٢٨٨)

﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَبَيَّنُوا فَأُولَٰئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ﴾[142]

دا خبره ربښتيا ده چې د الهي احکامو او هدايت پټوونکي (سره د دې) چې موږ خلکو ته په کتاب کې معلومات ورکړي، هغه خلک دي چې ورباندې د الله جل جلاله لعنت دئ او پر دوی باندې د (نورو) لعنت ويونکو لعنت (هم) دئ (لکه: ملايکې او داسې نور...)، مګر پر هغه کسانو باندې (لعنت نه سته) چې (د دوی له ډلې څخه وي خو) توبه وباسي (خپل عملونه) اصلاح کړي او (هغه څه) بېرته بيان کړي (کوم چې دوی پټ کړي وه)، نو د دغه کسانو زه توبه قبلوم او زه زيات توبه قبلوونکی يم.

رسول الله ﷺ د داسې علم څخه پناه غوښتې ده، چې د نورو خلګو ګټه پکښې نه وي.[143]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: که يو چا د يو عالم څخه پوښتنه وکړه او عالم خپله پوهه ځنې پټه کړه يعنې سوال يې ورجواب نه کړ، ورته معلوم هم وو، الله جل جلاله به د قيامت په ورځ په خوله کې د دوږخ قيضه وراچوي.[144]

---

(142) سورة البقرة، الايتان: ١٥٩، ١٦٠.

(143) وعن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: اللهم إني أعوذبك من الأربع: من علم لا ينفع، ومن قلب لا يخشع، ومن نفس لا تشبع، ومن دعاء لا يسمع. (أخرجه ابن أبى شيبة: ١٧/٦، رقم: ٢٩١٢٦، وأحمد: ٣٤٠/٢، رقم: ٨٤٦٩، وأبو داود: ٩٢/٢، رقم: ١٥٤٨، والنسائى: ٢٦٣/٨، رقم: ٥٤٦٧، وابن ماجه: ١٢٦١/٢، رقم: ٣٨٣٧، والحاكم: ١٨٥/١، رقم: ٣٥٤، وقال: صحيح)

(144) وعن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: من سئل عن علم فكتمه ألجمه الله يوم القيامة بلجام من نار. (أخرجه أحمد: ٣٤٤/٢، رقم: ٨٥١٤، وأبو داود: ٣٢١/٣، رقم: ٣٦٥٨، والترمذى: ٢٩/٥، رقم: ٢٦٤٩، وقال: حسن. وابن ماجه: ٩٨/١، رقم: ٢٦٦، والحاكم: ١٨٢/١، رقم: ٣٤٥)

# (۳۷) لویه گناه: خیانت کول

الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي:

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَخُونُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ وَتَخُونُوا أَمَانَاتِكُمْ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ۝٢٧﴾(۱۴۵)

اې مؤمنانو! تاسو د الله جَلَّ جَلَالُهُ او رسول ﷺ سره خیانت مه کوئ او (مه) په هغو امانتونو کې خیانت کوئ کوم چې ستاسو سره دي او تاسو هم پوهېږئ.

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: د منافق درې (۳) علامې دي که څه هم لمونځ کوي او روژه نیسي: کوم وخت چې خبري کوي دروغ وايي، چې وعده وکړي مخالفت کوي او چې امانت ورته کښېږدې خیانت کوي.(۱۴۶)

رسول الله ﷺ فرمايي: د هغه چا ایمان نه سته چې امانت نه ساتي خیانت پکښې کوي او د هغه چا دین نه سته چې وفا په وعده نه کوي.(۱۴۷)

(۱۴۵) سورة الانفال، الاية: ۲۷.

(١٤٦) وعن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: آية المنافق ثلاثة وإن صام وصلى وزعم أنه مسلم: إذا حدث كذب، وإذا وعد أخلف، وإذا ائْتُمِنَ خان. (أخرجه أحمد: ٣٥٧/٢، رقم: ٨٦٧٠، والبخارى: ٢١/١، رقم: ٣٣، ومسلم: ٧٨/١، رقم: ٥٩، والترمذى: ١٩/٥، رقم: ٢٦٣١)

(١٤٧) عن أنس رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: لا إيمان لمن لا أمان له، ولا دين لمن لا عهد له. (أخرجه أحمد: ١٣٥/٣، رقم: ١٢٤٠٦، وعبد بن حميد، ص: ٣٦١، رقم: ١١٩٨، وأبو يعلى: ٢٤٦/٥، رقم: ٢٨٦٣، وابن حبان: ٤٢٢/١، رقم: ١٩٤، والطبرانى فى الأوسط: ٩٨/٣، رقم: ٢٦٠٦، والبيهقى: ٢٨٨/٦، رقم: ١٢٤٧٠، والضياء: ٧٣/٥، رقم: ١٦٩٩)

رسول الله ﷺ فرمايي: زه دريېم د دوو شريکانو يم تر څو چې يو يې د خپل ملګرى سره خيانت نه وکړي او که يې خيانت وکړ زه يې له منځه وزم. (۱۴۸)

## (۳۸) لويه ګناه: احسان اچول

يو څوک چې د يو چا سره احسان وکړي وروسته بيا احسان ورباندي اچوي، چي ما داسي احسان درسره وکړئ هغه په څوريږي دا لويه ګناه ده، ځکه الله جل جلاله فرمايي:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُبْطِلُوا۟ صَدَقَٰتِكُم بِٱلْمَنِّ وَٱلْأَذَىٰ كَٱلَّذِى يُنفِقُ مَالَهُۥ رِئَآءَ ٱلنَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ﴾(۱۴۹)

اې مؤمنانو! خپل خيراتونه په احسان اچولو او (د ورياد ولو) په ضرر سره له منځه مه وړئ (يعني داسي کړني ستاسو د خيراتونو ثواب له منځه وړي او د دې مثال داسي دئ:) لکه هغه څوک چي د الله جل جلاله په لاره کي و خلکو ته د ځان ښوولو په نيت مال مصرف کړي، پر الله جل جلاله او د آخرت پر ورځ باندي ايمان نه لري.

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: څلور کسان به جنت ته داخل نه سي د شرابو چيښونکى، دمور او پلار آزاري، احسان اچونکى او د زنا څخه پيدا سوى انسان. (۱۵۰)

---

(۱٤٨) عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: يقول الله: أنا ثالث الشريكين ما لم يخن أحدهما صاحبه، فإذا خان خرجت من بينهما. (الحاكم في مستدركه، ج: ٢، ص: ٦٠، ح: ٢٣٢٢)

(١٤٩) سورة البقرة، الاية: ٢٦٤.

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: جنت ته به چم کوونکی، بخيل، احسان اچونکی او د مريانو سره بد سلوک کوونکی داخل نه سي.[١٥١]

## (٣٩) لويه ګناه: د الله جل جلاله تقدير نه منل

مؤمن مسلمان ته پکار ده چي داسي عقيده ولري، چي ټولي پيښي په تقدير کي ليکلي دي هر څه چي په دنيا کي رامنځته کيږي دا د تقدير فيصلې دي، ځکه الله جل جلاله فرمايي:

﴿إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ۝٤٩﴾[١٥٢]

باور وکړئ! موږ هر شی په اندازه پيدا کړی دئ.

يعني مخکي تر دې چي هر شی منځته راسي الله جل جلاله په هغه شي علم لري او هغه يې په تقدير کي ليکلی وي. څوک چي پر دې ايمان نه لري چي هر شی الله جل جلاله په لوح محفوظ کي ليکلی دئ يعني پر تقدير ايمان نه لري دغو کسانو ته "قدريه وايي". د دوی په اړه رسول الله ﷺ داسي فرمايلي دي: د قيامت په ورځ چي کله الله جل جلاله اول او آخر خلګ ټوله سره يوځای کړي يو څوک به امر کړل سي چي په لوړ آواز داسي ناره وکړي: د الله جل جلاله دښمنان چيري دي؟ هغه کسان به راولاړ سي چي د الله جل جلاله تقدير يې نه منه دوږخ ته به يې داخل کړي او

---

(١٥٠) عن ابن عمر رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: لا يدخل الجنة أربعة: مدمن خمر، ولا عاق لوالديه، ولا منان، ولا ولد زنية. (أخرجه عبد الرزاق: ٤٥٤/٧، رقم: ١٣٨٥٩، وأحمد: ٢٠٣/٢، رقم: ٦٨٩٢)

(١٥١) عن انس رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: لا يدخل الجنة بخيل، ولا خب، ولا منان، ولا سيئ الملكة، وأول من يدخل الجنة المملوك إذا أطاع الله وأطاع سيده. (أخرجه أحمد: ٤/١، رقم: ١٣. وأخرجه أيضًا أبو يعلى: ٩٤/١، رقم: ٩٣)

(١٥٢) سورة القمر، الاية: ٤٩.

الله ﷻ به ورته وفرمايي: د دوږخ عذاب وڅکئ موږ هر شی په اندازه پيدا کړی دئ. [153]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: هر شی د الله جل جلاله په تقدير کي ليکلی دئ تر داسي اندازې چي کمزوري او سستيت لا هم ليکل سوي دي. [154]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: هرامت ته مجوسيان (يعني اتش پرسته) سته، د دې امت مجوسيان هغه کسان دي چي تقدير ته عقيده نه لري او داسي فکر کوي چي هر شی همدا اوس پيدا سو مخکی نه وو ليکل سوی. وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: که چيری تاسو ورسره يوځای سواست نو خبر يې کړئ چي زه د دوی څخه بېزاره يم. وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : زما دي په هغه ذات قسم وي چي زما نفس يې په قدرت کي دئ که د دوی څخه يو د اُحد د غره په څېر سره زر ولري هغه ټول خيرات کړي قبول به نه سی تر هغه پوري چي پر تقدير ايمان رانه وړي.

بيا رسول الله ﷺ د جبرئيل عليه السلام حديث ذکر کړ، چي پوښتنه يې ځني کړې وه چي ايمان څه شي دئ؟ ده مبارک ﷺ په جواب کي ورته

---

[153] و روى عمر بن الخطاب عن رسول الله ﷺ قال: إذا جمع الله الأولين والآخرين يوم القيامة أمر مناديا فنادى نداء يسمعه الأولون و الآخرون: أين خصماء الله؟ فتقوم القدرية فيؤمر بهم إلى النار. يقول الله: ذوقوا مس سقر. إنا كل شيء خلقناه بقدر. (اخرج نحوه ابن مردويه من حديث ابن عباس رضي الله عنه مرفوعا ذكره السيوطي في الدرالمنثور. و الطبرانى فى الأوسط: ١٦٢/٧، رقم: ٧١٦٢، قال الهيثمى: ٢٠٦/٧)

[154] عن ابن عمر رضي الله عنهما قال: قال رسول الله ﷺ: كل شيء بقدر حتى العجز و الكيس. (أخرجه أحمد: ١١٠/٢، رقم: ٥٨٩٣، ومسلم: ٢٠٤٥/٤، رقم: ٢٦٥٥)

ویلي وه، چې ایمان دا دئ،چې پر الله جل جلاله، ملایکو، کتابونو، رسولانو او پر تقدیر ایمان ولري.(۱۵۵)



# (۴۰) لویه ګناه: د خلګو عیبونه لټول

د مسلمان ورور په عیبو پسې ګرځېدل او ښکاره کول لویه ګناه ده، ځکه الله جل جلاله فرمایي:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱجۡتَنِبُواْ كَثِيرٗا مِّنَ ٱلظَّنِّ إِنَّ بَعۡضَ ٱلظَّنِّ إِثۡمٞۖ وَلَا تَجَسَّسُواْ﴾(۱۵۶)

ژباړه: اې مؤمنانو! د ډېرو ګومانو څخه ځان وساتئ، باور وکړئ! چې ځیني ګومانونه ګناه ده او تجسس مه کوئ (یعني د خلګو د عیبو لټه مه کوئ).

مفسرینو ویلي: الله جل جلاله چې تجسس په قرآن کي منعه کړی دئ مراد ځني د مسلمانانو د عیبونو او پټو حالاتو څخه بحث کول دي.

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنهما ته وویل سوه، چې دغه ولید بن عقبة د ږیري څخه یې شراب څڅېږي. ده مبارک صلی الله علیه وسلم په جواب کي ورته وویل: موږ د تجسس څخه منعه سوي یو، کله چي شراب چیښل یې ښکاره سو بیا یې نیسو.(۱۵۷)

(۱۵۵)اخرج صدر حديث ابن عمر، احمد في مسنده الي قوله (وان الامر انف اي مستانف، لم يعدره الله ولاقضاه، بل العبادالله تقع اعمالهم بلا قدر سابق وبقيته كما في الدرالمنثور: ان مرضوا فلا تعودوهم وان ماتو ا فلا تشهدوهم. وعجز الحديث قوله: فاذا لقيتهم ... الخ. اخرجه مسلم في اول صحيحه.

(۱۵۶)سورة الحجرات، الاية: ۱۲.

(۱۵۷)وعن ابن مسعود رضي الله عنه: أَنَّهُ أُتِيَ بِرَجُلٍ فَقِيلَ لَهُ: هَذَا فُلَانٌ تَقْطُرُ لِحْيَتُهُ خَمْراً، فَقَالَ: إِنَّا قَدْ نُهِينَا عَنِ التَّجَسُّسِ، ولكِنْ إِنْ يَظْهَرْ لَنَا شَيْءٌ، نَأْخُذْ بِهِ. (أخرجه أبو داود: ۴۸۹۰)

په تأسف باید ووایم: زموږ په ټولنه کي زیات شمېر خلک د هغه چا عیبونه لټوي، چي پر یوه لږ شي یې خوا ځني بده سوې وي او یا یې رتبه تر ده لوړه سي، عیبونه خو څه کوې د ځانه عیبونه وربانديجوړوي.

## (۴۱) لویه ګناه: چغلګري کول

چغلګري کول لویه ګناه ده، ځکه الله جل جلاله رسول الله ﷺ ته فرمایي:

﴿وَلَا تُطِعۡ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِينٍ ۝١٠ هَمَّازٍ مَّشَّآءِۭ بِنَمِيمٍ ۝١١﴾[۱۵۸]

ژباړه: ته د هر قسم خوړونکي، سپک انسان، عیب ویونکي او د چغلګرۍ کوونکي خبره مه منه.

رسول الله ﷺ فرمایي: چغلي کوونکی به جنت ته داخل نه سي.[۱۵۹]

په بل حدیث کي راغلي دي، چي یوه ورځ رسول الله ﷺ د دوو قبرونو سره تېر سو او وېې فرمایل: دغه دوه کسان په عذاب دي؛ یوه د بولو څخه ځان نه ساتئ، دا بل چغلګري کول. وروسته ده مبارک ﷺ یوه شنه لښته را واخیستل دوه ځایه یې کړل پر دواړو قبرونو یې

---

[۱۵۸] سورة القلم، الآية: ۱۰، ۱۱.

[۱۵۹] وعن حُذَيْفَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رسولُ الله ﷺ: لا يَدْخُلُ الجَنَّةَ نمَّامٌ. (أخرجه البخاري: ۲۱/۸ (٦٠٥٦)، ومسلم: ۷۰/۱ (۱۰۵) (۱٦۷))

ودرول او و يې ويل: ښايي الله ﷻ يو څه عذاب ځنې سپک کړي تر هغه وخته پورې چې دا لښتې وچېږي.[160]

# (۴۲) لويه گناه: لعنت ويل

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: پر مؤمن مسلمان باندې لعنت ويل د ومره لويه گناه ده لکه د مؤمن مسلمان وژل.[161]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: رښتينى مسلمان ته نه ښايي چې لعنت ويونکى وي.[162]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: مسلمان ته ښکنځل کول فسق دئ او جنگ ورسره کول کفر دئ. يعني دومره لويه گناه ده لکه کفر.[163]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: تهمت ويونکى، لعنت ويونکى او سپکې خبرې کوونکى مؤمن نه وي.[164]

---

(۱۶۰) عن ابن عباس قال: مر النبى ﷺ على قبرين فقال: إنهما ليعذبان وما يعذبان من كبير ، ثم قال: بلى أما أحدهما فكان يسعى بالنميمة، وأما أحدهما فكان لا يستتر من بوله. قال: ثم أخذ عودًا رطبًا فكسره باثنتين ثم غرز كل واحد منهما على قبر ثم قال: ... (فذكره أخرجه البخارى: ٤٦٤/١ ، رقم: ١٣١٢، ومسلم: ٢٤٠/١، رقم: ٢٩٢)

(۱۶۱) عن ابي مسعود رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: لعن المؤمن كقتله. (أخرجه البخارى فى الأدب المفرد: ٢٦٨/١، رقم: ٧٦٣)

(۱۶۲) عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: لا ينبغى لصديق أن يكون لعانا. (أخرجه أحمد: ٣٣٧/٢، رقم: ٨٤٢٨، ومسلم: ٢٠٠٥/٤، رقم: ٢٥٩٧. وأخرجه أيضًا البخارى فى الأدب المفرد: ١١٨/١، رقم: ٣١٧)

(۱۶۳) عن ابي مسعود رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: سباب المسلم فسوق وقتاله كفر. (أخرجه أحمد: ٣٨٥/١، رقم: ٣٦٤٧، والبخارى: ٢٧/١، رقم: ٤٨، ومسلم: ٨١/١، رقم: ٦٤، والترمذى: ٣٥٣/٤ ، رقم: ١٩٨٣)

(۱۶٤) عن عبد الله بن مسعود رضي الله عنه أَنَّ رسولَ الله ﷺ قال: ليس المؤمن بطعَّان ولا لعَّان، ولا فاحش ولا بذيء. (تحفة: ١٠٤/٧، حديث: ٩٤٣٤)

**يادونه:**

پر ژوندي کافر باندي هم لعنت ويل جائز نه دئ تر څو ژوندى وي او که مړ سو بيا لعنت ورباندي ويل جائز دي او يا داسي وي چي نه مسلمان کېدل يې يقيني وي لکه ابليس.

پاته دي نه وي چي په اجتماعي ډول باندي پر يوه ګناهکاره ډله باندي لعنت ويل پروا نه کوي لکه څوک چي ووايي: پر دروا غجنانو دي د الله جل جلاله لعنت وي، يا ووايي: پر غلا کوونکو دي د الله جل جلاله لعنت وي.

# (۴۳) لويه ګناه: په وعده وفا نه کول

د انسانانو د ورځني ژوندانه د پرمختګ لپاره يو مهم شی وعده کول دي او پر دغه وعده باندي عمل کول دي. که د وعدې د وفا اهميت له منځه ولاړسي نو خلک به د زياتو کړاوونو سره مخ سي؛ د پرمختګ مخه به ونيول سي او اعتماد به له منځه ولاړ سي، دا خو يې دنيوي تاوان دئ. اخروي تاوان هم لري ځکه د الهي حکم څخه مخالفت راځي، الله جل جلاله د وعدې د وفا اړونده فرمايي:

﴿وَأَوْفُوا بِالْعَهْدِ إِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْئُولًا ۝٣٤﴾[۱۶۵]

ژباړه: په وعده وفا وکړئ، باور وکړئ د هري وعدې پوښتنه کېږي (چي تا دغه وعده ولي نه ده پوره کړې؟)

[۱۶۵] سورة الاسراء، الاية: ۳۴.

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: څلور شيان که په چا کې موجود سوه خالص منافق دئ، که يو پکښې موجود سو د منافق يو خوی پکښې دئ تر هغه وخته چې پرېږدی يې. (هغه څلور خويونه دا دي: لومړی:) دا چې کوم وخت خبري کوي دروا‌غ وايي،(دوهم:) دا چې امانت ورته کښېږدي خيانت پکښې کوي، (درېيم:) دا چې وعده وکړي په وعده وفا نه کوي، (څلورم:) دا چې جنګ کوي ښکنځل کوي.[166]

# (۴۴) لويه ګناه: سحر، جادو
## او د نجومګر وړاندوينا رښتيا بلل

په پټو باندي يو الله جل جلاله خبر دئ. که جادوګر، يا نجومګر د غيبو خبره وکړي لويه ګناه ده او منل يې هم لويه ګناه ده، ځکه الله جل جلاله فرمايي:

﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖٓ اَحَدًا ۝٢٦ اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ﴾[167]

ژباړه: الله جل جلاله په پټو خبر دئ هيچا ته پټې نه ښيي مګر چا ته چې يې خوښه سي (لکه) خپل رسول ته (چې ځيني معلومات ورکوي)

[166] وعن عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما: أَنَّ رسول الله ﷺ قَالَ: أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقاً خَالِصاً، وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتَّى يَدَعَهَا: إِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ، وَإِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ، وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ. (أخرجه البخاري: ١٥/١ (٣٤)، ومسلم: ٥٦/١ (٥٨) (١٠٦))

[167] سورة الجن، الايتان: ٢٦، ٢٧.

رسول الله ﷺ فرمايي: څوک چي نجومګر يا جادوګر ته ورسي او د هغه پيشګويي رښتيا وبولي، دغه کس په يقيني ډول د محمد ﷺ د دين څخه منکر سو يعني کافر سو.[۱۶۸]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: څوک چي نجومګر يا جادوګر ته ورسي او د هغه پيشګويي رښتيا وبولي، څلوېښت ورځي يې لمونځ نه قبليږي.[۱۶۹]

## (۴۵) لويه ګناه: خاوند خوابدی کول

د ښځي د آرامۍ او هوسا ژوند کولو لپاره الله جل جلاله د نارينه پر اوږو زيات پيتي ايښي دي. ښځه چي ماشومه وي تمام ضروريات يې د پلار پر غاړه دي او هغه پلار چي د ماشومانو لوښو صحيح تربيت کوي د رسول الله ﷺ په مبارکه ژبه ورته جنت لازم دئ. بيا چي ښځه بالغه سي بيا يې تمام ضروريات پر خاوند باندي دي؛ جامه، نفقه او داسي نور. تر داسي بريده چي د خوراک پخول لا هم پر ښځه نه سته. په شريعت کي دا مسئله رانقل سوې ده چي که يوه ښځه خاوند ته ووايي: زه ستا د کور کتغ نه کوم، ډوډۍ نه درپخوم. خاوند حق ورباندي لري او که يا؟ جواب دا دئ، چي خاوند به وګوري که د دې اشپزي او ډوډۍ پخول زده وه نو خام مواد به ورته راوړي او ورته و به وايي: دغه ستا خوراک دئ نور ستا خوښه ده اوم يې خورې او که يې

---

[۱۶۸] عن الحسن عن على بن أبى طالب قال: من أتى كاهنا أو عرافا فصدقه بما يقول فقد كفر بما أنزل على محمد ﷺ. (كنز العمال] ١٧٦٨٤)

[۱۶۹] وعن صَفِيَّةَ بِنتِ أبي عُبيدٍ عن بعض أزواجِ النَّبيِّ ﷺ عن النَّبيّ ﷺقال: مَنْ أَتَى عَرَّافاً فَسَأَلَهُ عنْ شَيْءٍ فَصَدَّقَهُ ، لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلاَةٌ أَرْبَعِينَ يَوماً. (البخاري: ٣٧/٧ (٢٢٣٠) (١٢٥))

پخوې او که د ښځې اشپزي زده نه وه خاوند به پوخ کتغ ورته راوړي او ښځه به مړوي او خاوند خو د خپل ځان او نوري کورنۍ د کتغ پخولو حق په هیڅ صورت کي نه ورباندي لري.

خاوند به مستقل سرای یا مستقله خونه ورکوي، چې یوازي دا پکښې اوسېږي او د بل چا د ورتگ څخه خوندي وي. خاوند د جامو پرېوللو، سرای جارو کولو او داسي نورو کارونو هیڅ حق نه ورباندي لري خو که یې ښځه وکړي الله جل جلاله یې په عبادت ورحسابي. خاوند نه سي کولای خپله ښځه ووهي، البته که ښځه "ناشزه" سوه یعني د خاوند د شرعي امورو اطاعت یې نه کاوه، لکه: دکوره وتل، د نامحرمه خلکو سره خبري کول، لمونځ نه کول او داسي نور. بیا به لومړی ځني خوابدی کېږي، که په هغه اصلاح نه سوه بیا به یوه اندازه وهل ورکوي هغه هم په دې ډول چي په بدن کي یې ټپ معلوم نه سي، هډ یې مات نه سي، پر مخ او سر باندي دغه وهل نه وي.

کله چي ښځه اولادونه پیدا کړي بیا دا د یوې مور په توگه اوسېږي، پر اولادونو یې، نفقه، خدمت او عزت فرض دئ. خلاصه دا چي ښځه ټول عمر د هر ډول تکلیف گاللو او کار کولو څخه خلاصه ده یوازي د استراحت وختونه به سبا کوي. دا چي ښځه ضعیف مخلوق ده الله جل جلاله تکلیف ځني پورته کړی دئ. د کافرانو پر عقل خو توره شپه ده چي عسکري هم ورباندي کوي، پیسې هم په گټي او نور کارونو هم باندي کوي، پر اسلام لا نیوکي بالابود کوي ځکه کافر لکه موږک اصلاً د مسلمانانو سپېڅلو ښځو ته ځان رسول غواړي.

په هر صورت پر ښځه باندي صرف مسؤلیت سته، هغه دا چي خاوند به راضي ساتي. که خاوند ځني ناراضه سو کبیره گناه ده، ځکه

رسول الله ﷺ فرمايي: درې کسان دي چې الله جل جلاله يې نه لمونځ قبلوي او نه يې نېکۍ آسمانو ته پورته کېږي:

١. هغه مريی چې د خپل بادار څخه تښتېدلی وي تر هغه وخته پورې چې خپل بادار ته راځي.
٢. هغه ښځه چې مېړه څني ناراضه وي تر هغه وخته چې مېړه څني راضي کېږي.
٣. د شرابو مست دئ تر هغه وخت پورې چې پر سد کېږي.(١٧٠)

رسول الله ﷺ فرمايي: کوم وخت چې خاوند مېرمن و خپل ځای ته وغواړي دا ورته را نه سي او خاوند په خوابدۍ شپه ورسره تېره کړي، ملايکي پر دې ښځه باندې تر سهاره لعنت وايي.(١٧١)

رسول الله ﷺ فرمايي: کومه ښځه چې د خاوند ځای پرېږدي او خاوند څني ناراضه وي، ملايکي تر هغه مهاله لعنت وربانديي وايي چې خاوند څني راضي کېږي.(١٧٢)

---

(١٧٠) عن جابر بن عبد الله قال: قال رسول الله ﷺ: ثلاثة لا يقبل الله لهم صلاة ولا يرفع لهم إلى السماء حسنة: العبد الآبق حتى يرجع إلى مواليه فيضع يده في أيديهم، والمرأة الساخط عليها زوجها حتى يرضى، والسكران حتى يصحو. (أخرجه ابن خزيمة: ٦٩/٢، رقم: ٩٤٠، وابن حبان: ١٧٨/١٢، رقم: ٥٣٥٥، والطبرانى فى الأوسط: ٩٥/٩، رقم: ٩٢٣١)

(١٧١) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: إِذَا دَعَا الرَّجُلُ اِمْرَأَته لِفِرَاشِهِ فَأَبَتْ أَنْ تَجِيءَ فَبَاتَ غَضْبَانًا عَلَيْهَا لَعَنَتْهَا الْمَلَائِكَةُ حَتَّى تُصْبِحَ. (أخرجه أحمد: ٤٣٩/٢، رقم: ٩٦٦٩، والبخارى: ١١٨٢/٣، رقم: ٣٠٦٥ ، ومسلم: ١٠٦٠/٢، رقم: ١٤٣٦، وأبو داود: ٢٤٤/٢، رقم: ٢١٤١)

(١٧٢) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: إذا بَاتَتِ الْمَرْأَةُ هَاجِرَةً فراش زوجها لَعَنَتْهَا الملائكة حتى ترجعَ. (أخرجه أحمد: ٣٨٦/٢، رقم: ٩٠٠١، والبخارى: ١٩٩٤/٥، رقم: ٤٨٩٨، ومسلم: ١٠٥٩/٢، رقم: ١٤٣٦)

# (۴٦) لويه گناه:
## عکس اخيستل او د ځان سره ساتل

عکس اخيستل دومره عام سوی دئ چي خلکو د خپل ژوند يوه برخه گرځولې ده. هيڅ ځای د عکس اخيستلو څخه خلاص نه دئ حتی په حرم شريف کي او په مسجدو کي هم خلک عکسونه اخلي او دا يو يادگار بولي، حال دا چي عکس اخيستل کبيره گناه ده، ځکه الله جل جلاله فرمايي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِينًا﴾ (۱۷۳)

ژباړه: کوم کسان چي الله جل جلاله او رسول الله ﷺ (په عکس يا مجسمه جوړولو) ځوروي پر دوی باندی په دنيا اوآخرت کي د الله جل جلاله لعنت دئ او د دوی لپاره شرموونکی عذاب برابر سوی دئ.

رسول الله ﷺ فرمايي: هغه کسان چي تصويرونه جوړوي د قيامت په ورځ به عذاب ورکول کيږي او ورته به وويل سي: هغه تصويرونه ژوندي کړئ چي تاسو په دنيا کي جوړ ول. (۱۷۴)

عائشة رضي الله عنها فرمايي: يوه ورځ رسول الله ﷺ د سفر څخه راغلئ ما پر دېواله باندي يوه پرده ځړولې وه چي عکسونه پکښې وه. کله چي رسول الله ﷺ وليده په رنگ کي يې تغير پيدا سو او و يې

(۱۷۳) سورة الاحزاب، الاية: ۵۷.

(۱۷٤) عن نافع عن ابن عمر قال: قال النبي ﷺ: إن أصحاب هذه الصورة يعذبون يوم القيامة يقال لهم أحيوا ما خلقتم. (أخرجه أحمد: ۲/۲٦، رقم: ٤۷۹۲)

فرمایل: اې عائشې! د قیامت په ورځ د هغو کسانو لپاره سخت عذاب دئ، چې د الله جل جلاله د مخلوق سره مشابه شیان جوړوي( یعني عکسونه یا تصویرونه جوړوي). عائشه رضي الله عنها وايي: ما هغه پرده وشکوله او دوه بالښتان مې ځني جوړکړل.[۱۷۵]

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: هر تصویر جوړونکی به په دوږخ کې وي.[۱۷۶]

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: څوک که په دنیا کې یو تصویر جوړ کړي د قیامت په ورځ به مجبور کړل سي، چې نفس هم ورکړي او نفس ورکول به د ده لپاره ممکن نه وي.[۱۷۷]

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: هغه کور ته ملایکه نه راځي چې سپی یا عکس پکښې وي.[۱۷۸]

[۱۷۵] عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ سَمِعَ عَائِشَةَ تَقُولُ: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللهِ صلی الله علیه وسلم وَقَدْ سَتَرْتُ سَهْوَةً لِي بِقِرَامٍ فِيهِ تَمَاثِيلُ فَلَمَّا رَآهُ هَتَكَهُ وَتَلَوَّنَ وَجْهُهُ وَقَالَ: يَا عَائِشَةُ! أَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِينَ يُضَاهُونَ بِخَلْقِ اللهِ، قَالَتْ عَائِشَةُ: فَقَطَعْنَاهُ فَجَعَلْنَا مِنْهُ وِسَادَتَيْنِ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ فِي الصَّحِيحِ عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي شَيْبَةَ، شعب الايمان: ۵۸۹۹)

[۱۷۶] عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: كل مصور فى النار يجعل له بكل صورة صورها نفس تعذبه فى جهنم. (أخرجه أحمد: ۳۰۸/۱، رقم: ۲۸۱۱، ومسلم: ۱۶۷۰/۳، رقم: ۲۱۱۰. كتاب الكبائر، ص:۲۰۸)

[۱۷۷] عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: من صور صورة فى الدنيا كلف أن ينفخ فيها الروح يوم القيامة وليس بنافخ. (أخرجه أحمد: ۲٤۱/۱، رقم ۲۱٦۲، ومسلم: ۱٦۷۱/۳، رقم: ۲۱۱۰، والنسائى: ۲۱۵/۸، رقم: ۵۳۵۸)

[۱۷۸] وعن أبي طلحة رضي الله عنه: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلی الله علیه وسلم قال: لاَ تَدْخُلُ المَلاَئِكَةُ بَيْتاً فِيهِ كَلْبٌ وَلاَ صُورَةٌ. أخرجه البخاري: ۱۳۸/٤ (۳۲۲۵)، ومسلم: ۱۵٦/٦ (۲۱۰٦) (۸۳))

# (۴۷) لويه گناه:
## د غم په وخت کې بې صبري کول

د هر انسان لپاره تول هغه شيان په تقدير کې ليکلي وي کوم چې ده ته پيښيږي، ځکه نو کله به خوشحالي ورته راځي او کله به غم ورته راځي، کله به يې په کور کې نوی ماشوم پيدا کيږي او کله به يې په کور کې مړی کيږي او داسي نور. د دې ټولو په اړه هدايت داسي دئ، چې که انسان ته خوشحالي راسي د الله جل جلاله شکر ايستل ورته پکار دي او که غم ورته راسي نو بيا صبر کول ورته پکار دي او که چا ته غم راسي بې صبري کوي دا لويه گناه ده. مثلا: په يوه کور کې د کور غړی وفات سي نو نارينه او ښځې يې چيغې او نارې وهي، ټوک گرېوانونه شکوي او ځان د مځکې مځکې وهي دا لويه گناه ده، ځان څني ساتل پکار دئ، ځکه الله جل جلاله فرمايي:

﴿وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ وَالْجُوْعِ وَنَقْصٍ مِّنَ الْاَمْوَالِ وَالْاَنْفُسِ وَالثَّمَرٰتِ وَبَشِّرِ الصّٰبِرِيْنَ ﴿١٥٥﴾ الَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ قَالُوْٓا اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ﴿١٥٦﴾ اُولٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوٰتٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُوْنَ ﴿١٥٧﴾﴾ (۱۷۹)

ژباړه: او خامخا موږ به تاسو باندې په يو شي سره ازمايښت کوو (يعني دا چې) بېره، لوږه، د مال، ځان او مېوو کمښت (درباندې راولو، که چا صبر وکړ نو) ته (اې پيغمبره!) صبر کوونکو ته (د

---

(۱۷۹) سورة البقرة، الايات: ۱۵۵ - ۱۵۷.

جنت) زېرى ورکړه، (صبر کوونکي) هغه خلک دي چي کله دوى ته غم ورسېږي دوى "اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَيۡهِ رٰجِعُوۡنَ" کلمه وايي. همدا هغه کسان دي چي د خپل رب جل جلاله د لوري ورته مغفرت دئ (او د الله جل جلاله د لوري) باندي رحمتونه دي او دا هغه کسان چي پر سيده لاره باندي روان دي.

د ابوبرده رضي الله عنه څخه روايت دئ، چي رسول الله ﷺ د هغه ښځي څخه بېزاره دئ چي پرمړي باندي ويرکوونکې وي او د هغه ښځي څخه چي سر خريي او يا يې د غم په وخت کي شکوي او د هغه ښځي څخه چي د غم په وخت کي کالي څيري.[180]

رسول الله ﷺ فرمايي: دوه شيان که په خلګو کي پيدا سوه دغه دوه شيان په دوى کي کفر دئ: يو تهمت پر قومونو ويل او بل د مړي پر کور وير کول.[181]

رسول الله ﷺ فرمايي: په وير کولو سره په قبر کي مړى په عذابېږي.[182]

---

[180] وَعَنْ أَبي بُرْدَةَ قال: وَجعَ أبو مُوسَى فَغُشِيَ عَلَيْهِ، وَرَأسُهُ فِي حِجْرِ امْرَأَةٍ مِنْ أَهْلِهِ، فَأَقْبَلَتْ تَصِيحُ بِرَنَّةٍ، فَلَمْ يَسْتَطِعْ أَنْ يَرُدَّ عَلَيْهَا شَيْئاً، فَلَمَّا أَفَاقَ قَالَ: أَنَا بَرِيءٌ مِمَّنْ بَرِىءَ مِنْهُ رسُولُ اللهِ ﷺ، إنَّ رسُولَ اللهِ ﷺ بَرِيءٌ مِنَ الصَّالِقَةِ، والحَالِقَةِ، والشَّاقَّةِ. (أخرجه البخاري: ١٠٣/٢ (١٢٩٦) ، ومسلم: ٧٠/١ (١٠٤) (١٦٧))

[181] وعن أَبي هريرة رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رسول الله ﷺ: اثْنَتَان في النَّاسِ هُمَا بهم كُفْرٌ: الطَّعْنُ فِي النَّسَبِ، وَالنِّيَاحَةُ عَلَى المَيِّتِ. (أخرجه مسلم: ٥٨/١ (٦٧) (١٢١))

[182] عن عمر بن الخطاب رضي الله عنه قال: قال النَّبِيّ ﷺ: المَيِّتُ يُعَذَّبُ فِي قَبْرِهِ بِمَا نِيحَ عَلَيْهِ. (أخرجه البخاري: ١٠٢/٢ (١٢٩٢)، ومسلم: ٤١/٣ (٩٢٧) (١٧))

# (۴۸) لویه ګناه: تر لاس لاندې خلک
## ټیټ بلل، سزا ورکول او ځان باندې کنجول

که څوک پر کوم مقام باندې وي او تر لاس لاندې يې څه کسان وي هغوی ته په ټیټه سترګه کتل او ځان لوړ ورته ښوول، د هغوی د ټیټ ښوولو او ځان لوړ ښوولو په وجه باندې هغوی ته سپکې خبرې کول، یا د سزا ګواښ ورته کول او یا سزا ورکول لویه ګناه ده، ځکه الله جل جلاله فرمایي:

﴿وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا ﴿٣٦﴾﴾[183]

د الله جل جلاله عبادت وکړئ، د الله جل جلاله سره هیڅ څوک شریک مه نیسئ، د مور او پلار سره احسان وکړئ، د قریبانو، یتیمانو، مسکینانو، لیرې او نژدې همسایګانو، اندیوالانو، مسافرانو او خادمانو سره (هم احسان وکړئ)، الله جل جلاله هغه څوک د شک وتلی نه خوښوي چې باتک او کبرجن وي.

**فایده:**

دغه کسان چې الله جل جلاله په قرآن کې ذکر کړي دي ټول هغه کسان دي، چې زیات وخت کمزوري وي ځکه الله جل جلاله و انسان ته ښوونه کړې

---

[183] سورة النساء، الاية: ٣٦.

ده چي د دغو کسانوسره نېکي وکړه او لويي مه باندي کوه ځکه الله جل جلاله لويي کوونکی نه خوښوي.

رسول الله ﷺ يوه ورځ يو خادم ته ږغ وکړئ ( چي کار يې پرخپل وخت نه کاوه). کوم وخت چي هغه خادم راغلئ رسول الله ﷺ مسواک باندی پورته کړئ او ورته و يې فرمايل: که زه د بدلې اخيستلو څخه نه بېرېدلای ما به ته په دې مسواک وهلی وای يعني الله جل جلاله د هر چا څخه د هر چا بدله اخلي. اصلاً د رسول الله ﷺ خپل امت ته هم دا ښوونه ده، چي يو څوک چي ستاسو تر لاس لاندي وي مه يې ځوروئ ځکه چي بدله اخيستل سته.[184]

د رسول الله ﷺ د ژوندانه وروستی وصيت د لاس لاندي خلکو اړونده وو او داسي يې فرمايل: تر لاس لاندي خلکو په اړه د الله جل جلاله څخه وبېرېږئ يعني که مو ظلم ورباندي کاوه الله جل جلاله به سزا درکړي.[185]

ابومسعود انصاري رضي الله عنه وايي: يوه ورځ مي په چلاخه مريی واهه د شا د خوا مي ږغ واورېدئ د قهر له وجه ورباندي پوه نه سوم څو چي رسول الله ﷺ راغلئ زما د لاسه چلاخه ولوېده. رسول الله ﷺ راته وويل: اې ابا مسعوده! ته چي پر دې مريي څومره برلاسی يې الله جل جلاله پر تا باندي تر هغه زيات برلاسی دئ (کولای سي الله جل جلاله سزا

[184] عن أم سلمة أن النبي ﷺ دعا خادما فأبطأت و في يده سواك فقال: لولا القصاص لضربتك بهذا السواك. (أبي يعلى في مسنده، ج:١٢، ص:٣٦٠، ح:٦٩٢٨)

[185] كان آخر كلام النبي ﷺ: الصلاة - الصلاة، اتقوا الله فيما ملكت أيمانكم. (البخاري في الأدب المفرد، ج: ١، ص:٦٧ ح: ١٥٨.

درکړي يعني ظلم مه کوه). ما ورته وويل: په هغه ذات دي قسم وي چي ته يې په حقه رسول لېږلی يې چي بيا به هيڅ مريی نه وهم.[186]

يو کس د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي تر لاس لاندي کس ته څو ځلي عفوه کوم که غلطي کوي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: اويا (۷۰) ځلي عفوه ورته کوه. د دې مطلب دا دئ، چي که تر لاس لاندي کس څخه غلطياني کېږي زيات وخت عفوه ورته کوه هسي نه چي الله جل جلاله ستا پر سزا باندي تا ته سزا درکړي.[187]

# (۴۹) لويه ګناه: همسايه ځورول

د همسايه په اړه الله جل جلاله فرمايي:

﴿وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْـًٔا وَّبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّبِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبٰى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْۢبِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۙ وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُوْرَا ۙ ﴿۳۶﴾﴾[188]

[186] عن أبي مسعود الأنصاري قال: بينما أنا ضارب غلاما لي بسوط إذ سمعت صوتا من خلفي، إعلم، يا أبا مسعود! فجعلت لا أعقل من الغضب حتى أتاني رسول الله ﷺ، فلما رأيته سقط السوط من يدي، فقال: إعلم، يا أبا مسعود! أن الله أقدر عليك منك على هذا الغلام. فقلت: والذي بعثك بالحق ما ضربت عبدا أبدا أو قال مملوكا. (مسند الربيع، رقم:٦٨٥)

[187] عن عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو يَقُولُ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ﷺ! كَمْ نَعْفُو عَنِ الْخَادِمِ؟ فَصَمَتَ ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ الْكَلَامَ، فَصَمَتَ فَلَمَّا كَانَ فِي الثَّالِثَةِ قَالَ: اعْفُوا عَنْهُ فِي كُلِّ يَوْمٍ سَبْعِينَ مَرَّةً. (سنن ابي داود، رقم:٥١٦٦)

[188] سورة النساء، الاية: ٣٦.

ژباړه: د الله جل جلاله عبادت وکړئ، د الله جل جلاله سره هيڅ ثوک شريک مه نيسئ، د مور او پلار سره احسان وکړئ، د قريبانو، يتيمانو، مسکينانو، ليري او نژدې همسايګانو، انډيوالانو، مسافرانو او خادمانو سره (هم احسان وکړئ)، الله جل جلاله هغه ثوک د شک وتلی نه خوښوي چې باټک او کبرجن وي.

رسول الله ﷺ وفرمايل: قسم په الله جل جلاله مؤمن نه دئ! (رسول الله ﷺ درې ځلې داخبره وکړه) يو چا ورته وويل: ثوک مؤمن نه دئ؟ يا رسول الله ﷺ! ده مبارک ﷺ وفرمايل: هغه ثوک چې همسايه يې د ضررنو او تاوانو څخه خلاص نه وي.[189]

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: هغه ثوک چې پرالله جل جلاله او د قيامت پر ورځ ايمان لري همسايه ته ضرر نه رسوي.[190]

د رسول الله ﷺ څخه د هغه ګناه پوښتنه وسوه چې د الله جل جلاله په نزد ډېره لويه ده؟ ده مبارک ﷺ په جواب کې وفرمايل: درې ګناوي ډيري لويي دي: يو دا چې د الله جل جلاله سره شريک ونيسي او حال دا چې الله جل جلاله ته پيدا کړی يې. دوهم دا چې خپل اولاد د دې ويري مړ کړې چې خوراکه به څنګه ورپيدا کوم؟ درېيم دا چې د همسايه د ښځې سره

[189] وعن أَبي هريرة رضي الله عنه: أن النَّبيّ ﷺ قَالَ: واللهِ لاَ يُؤْمِنُ! وَاللهِ لاَ يُؤْمِنُ! وَاللهِ لاَ يُؤْمِنُ ! قِيلَ: مَنْ يَا رَسُولَ الله ﷺ؟ قَالَ: الَّذِي لاَ يَأمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَه. (أخرجه البخاري: ١٢/٨، عقيب: (٦٠١٦ )، ومسلم: ٤٩/١ ( ٤٦ ) ( ٧٣ )

[190] وعن أَبي هريرة رضي الله عنه أن رَسُولَ الله ﷺ قَالَ: مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بالله وَاليَومِ الآخرِ، فَلاَ يُؤْذِ جَارَهُ ... (أخرجه البخاري: ٣٩/٨ ( ٦١٣٦ )، ومسلم: ٤٩/١ ( ٤٧ ) ( ٧٥ )

زنا وکړې (همسایه ستا د نقصان څخه په امن نه سو د زنا گناه خو لا بله ده). [191]

# (۵۰) لویه گناه: مسلمان ځورول، لکه: تور لگول، ښکنځل او داسې نور

الله جل جلاله فرمایي:

﴿وَالَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوْا فَقَدِ احْتَمَلُوْا بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا﴾ [192]

ژباړه: هغه کسان چي مؤمنان نارینه او مؤمناني ښځي (په تهمت ویلو) ځوروي پرته له دې چي دوی کومه گناه کړې وي (یعني تور وربانديي لگوي)، باور وکړئ! چي د بهتان او لوي گناه پیتې پر خپل ځان باندي باروي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: تاسو یو د بله حسد مه سره کوئ، یو د بل مالونه مه ډېره کوئ، بغض مه سره کوئ، پست شا خبري مه سره کوئ، یو حر دي بل حر نه خرڅوي، د الله جل جلاله بندگان وروڼه – وروڼه سئ، مسلمان د مسلمان ورور دئ، ظلم به نه ورباندي کوي، نه به یې سپکوي، نه به یې ذلیله کوي، تقوا دلته ده (رسول الله صلی الله علیه وسلم خپلې سینې ته درې ځله اشاره وکړه)، یو کس ته دومره شر بس دئ چي

---

[191] عن عبد الله قال قلت: يا رسول الله صلی الله علیه وسلم! أي الذنب أعظم؟ قال: ان تجعل لله ندا وهو خلقك. قال: قلت: ثم ماذا؟ قال: أن تقتل ولدك خشية أن يطعم معك. قال: قلت: ثم ماذا؟ قال: أن تزني بحليلة جارك. (سنن الترمذي، رقم:۳۱۸۲)

[192] سورة الاحزاب، آيت: ۵۸.

خپل مسلمان ورور توهين کړي، پر هر مسلمان باندي حرام دئ چي د بل مسلمان ويني توی کړي يا يې مال او سامان ورضايع کړي. (۱۹۳)

رسول الله ﷺ فرمايي: و مسلمان ته ښکنځل کول فسق دئ او وژل يې کفر دئ يعني دومره لويه ګناه ده لکه کفر. (۱۹۴)

## (۵۱) لويه ګناه: غريبان خلک سپک بلل او ځان لوړ پر بلل

د الله جل جلاله پر بندګانو باندي ځان لوی بلل او هغوی سپک بلل لويه ګناه ده يعني داسي عقيده درلودل، چي مال که چا درلودئ هغه عزت والا دئ او که څوک مسکين وو هغه بې عزته دئ. د الله جل جلاله په دربار کي مال او نه مال د عزت او سپکوالي معيار نه دي، بلکي د الله جل جلاله په دربار کي تقوا او نه تقوا د عزت او سپکوالي معيار دئ، ځکه رسول الله ﷺ ټول عمر د مسکينانو سره تېراوه، لکه: سلمان ،صهيب، بلال او عمار بن ياسر رضي الله عنهم. ياد کسان زيات مسکينان وه سره د دې چي رسول الله ﷺ د لوړ مقام او منزلت څښتن وو. يو وخت د کفارو مشرانو وويل: محمد ﷺ د داسي مسکينانو سره کښېني چي موږ په شرمېږو که دی زموږ سره ليدل غواړي نو داسي دي وکړي، چي دغه مسکينان

---

(۱۹۳) وعن ابي هريرة رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُول الله ﷺ: لا تَحَاسَدُوا، وَلاَ تَنَاجَشُوا، وَلاَ تَبَاغَضُوا، وَلاَ تَدَابَرُوا، وَلاَ يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْض، وَكُونُوا عِبَادَ الله إخْوَاناً، المُسْلِمُ أَخُو المُسْلم؛ لاَ يَظْلِمُهُ، وَلا يَحْقِرُهُ، وَلاَ يَخْذُلُهُ، التَّقْوَى هاهُنَا (ويشير إِلَى صدره ثلاث مرات) بحَسْب امْرِىءٍ مِنَ الشَّرِّ أنْ يَحقِرَ أخَاهُ المُسْلِمَ، كُلُّ المُسْلم عَلَى المُسْلم حَرَامٌ؛ دَمُهُ ومَالُهُ وعِرْضُهُ. (أخرجه مسلم: ۱۰/۸ ( ۲۵٦٤ ) ( ۳۲ )

(۱۹٤)... سباب المسلم فسوق و قتاله كفر. (شعب الايمان - البيهقي، رقم:۱۱۱۵۷)

دي وشړي موږ به ورځو خبري به ورسره کوو. رسول الله ﷺ ته چي دا خبره ورسېده الله جل جلاله دستي وحي نازلي کړې او ورته وې فرمايل:

﴿وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ ۭ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِمْ مِّنْ شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٥٢﴾﴾[١٩٥]

او کوم خلک چي سهار او ماښام خپل رب ته دعاوي کوي د هغه جل جلاله د خوښی لپاره (داسي کسان) د ځانه ليري مه شړه، د هغوی د حساب بار پر تا باندي نه سته او نه ستا د حساب بار پر دوی باندي، نو که يې وشړې په ظالمانو کي به وشمېرل سي.

يعني هغه کسان چي د خپل رب عبادت کوي الله جل جلاله ته محبوب دي او خير پکښې دي او په هغو کسان کي خير نه سته چي سرداران وي او د الله جل جلاله څخه ليری وي. کله چي رسول الله ﷺ د دوی د شړلو څخه منعه وکړه نو کفارو ورته وويل: يوه ورځ موږ ته راکړه چي موږ ستا سره ملاقات کوو دوی به نه وي، يوه ورځ دوی ته ورکړه موږ به نه يو. الله جل جلاله بيا وحي نازلی کړې رسول الله ﷺ يې د دې کاره هم منعه کړئ او داسي يې ورته وفرمايل:

﴿وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ﴾[١٩٦]

---

[١٩٥] سورة الانعام، الاية: ٥٢.

[١٩٦] سورة الكهف، الاية: ٢٨.

ژباړه: خپل نفس صبر کړه (ټینګ بند کړه) د هغه کسانو سره چي خپل رب سهار او ماښام بولي (عبادت يې کوي) او خپل رب د رضا اراده لري.

ځرنګه چي الله ﷻ تر ټولو انسانانو بهترین انسان حضرت محمد ﷺ د مسکینانو سره په یوځای کولو امرکړی دئ نو کمزوری امتي ته به چیری ښایي چي د الله ﷻ پر بندګانو ځان لوی او ښه وبولي.

# (۵۲) لویه ګناه: پایڅې تر بجلکو کښته کول

زیات وخت داسي وي چي خلک پایڅې د خیال په وجه کښته کوي دغسي عمل ګناه ده، ځکه لومړی خو کبر او ځان ښوونه ده او دوهم دا چي رسول الله ﷺ د دغسي عمل په ښکاره ټکو منع کړې ده او فرمایي: د کوم (کس) لنګ (یعني پایجامه یا پایڅې) چي تر بجلکو کښته وي (دغه کس به) په دوزخ کي وي.[۱۹۷]

رسول الله ﷺ فرمايي: چا که خپلي جامې د خیال لپاره اوږدې کړی الله ﷻ به د قیامت په ورځ د رحمت په نظر نه ورته ګوري.[۱۹۸]

د ابوذر رضي الله عنه څخه روایت دئ، چي رسول الله ﷺ درې ځلي وفرمایل: درې کسان دي چي الله جل جلاله د قیامت په ورځ خبري نه ورسره کوي، نه د رحمت په نظر ورته ګوري او نه یې هم د ګناهونو څخه خلاصوي. ابوذر رضي الله عنه پوښتنه وکړه، چي دا کسان خو تاوانیان، خاوري

---

[۱۹۷] وعن أَبي هريرة رضي الله عنه عن النبيِّ ﷺ قَالَ: مَا أَسْفَلَ مِنَ الكَعْبَيْنِ مِنَ الإزْارِ فَفِي النار. (أخرجه البخاري: ۱۸۳/۷ ( ۵۷۸۷ )

[۱۹۸] وعن أَبي هريرة رضي الله عنه: أَنَّ رسول الله ﷺ قَالَ: لا يَنْظُرُ اللهُ يَوْمَ القِيَامَةِ إِلَى مَنْ جَرَّ إزاره بَطَراً. (أخرجه البخاري: ۱۸۳/۷ ( ۵۷۸۸ ) ، ومسلم: ۱۴۸/۶ ( ۲۰۸۷ ) (۴۸ )

په سر دي دا څوک دي؟ يا رسول الله ﷺ! رسول الله ﷺ وفرمايل: يو چغلګر دئ، بل تر بجلکو پايڅې کښته کوونکی دئ، درېيم هغه کس دئ چې په قسم باندې مال خپل کړي. (١٩٩)

رسول الله ﷺ فرمايي: که چا لنګ (پايجامه) قميص او لنګوټه د خيال لپاره اوږده کړه، الله ﷻ د قيامت په ورځ د رحمت په نظر نه ورته وګوري. (٢٠٠)

# (٥٣) لويه ګناه:

## ورېښم، سره او سپين زر استعمالول

رسول الله ﷺ فرمايي: که چا په دنيا کې ورېښمني جامې واغوستې په آخرت کې به يې نه واغوندي، (البته دا حکم د نارينوو لپاره دئ ښځو ته يې اغوستل جائز دي). (٢٠١)

رسول الله ﷺ فرمايي: زما د امت پر نارينوو باندې د ورېښمينو جامو اغوستل او د سرو زرو استعمالول حرام دي، د ښځو لپاره يې استعمالول جائز دي. (٢٠٢)

---

(١٩٩) وعن أَبي ذر رضي الله عنه عن النبيِّ ﷺ قَالَ: ثلاثةٌ لا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ يَوْمَ القِيَامَةِ، وَلاَ يَنْظُرُ إلَيْهِمْ، وَلاَ يُزَكِّيهِمْ، وَلَهُمْ عَذَابٌ أَليمٌ. قَالَ: فقرأها رسول الله ﷺ (ثلاثَ مِرار)قَالَ أَبُو ذرٍّ: خَابُوا وَخَسرُوا! مَنْ هُمْ يَا رسول الله ﷺ؟ قَالَ: المُسْبِلُ، وَالمنَّانُ، وَالمُنفِقُ سِلْعَتَهُ بِالحَلِفِ الكاذِبِ (رواه مسلم. أخرجه مسلم: ٧١/١ ( ١٠٦ ) ( ١٧١ )

(٢٠٠) عن ابن عمر رضي الله عنهما عن النبيِّ ﷺ قَالَ: الإسْبَالُ في الإزار، وَالقَمِيصِ، وَالعِمَامَةِ، مَنْ جَرَّ شَيْئاً خُيَلاءَ لَمْ يَنْظُرِ الله إِلَيْهِ يَوْمَ القِيَامَةِ. أخرجه أبو داود: ٤٠٩٤، وابن ماجه:(٣٥٧٦)، والنسائي: ٢٠٨/٨، وفي الكبرى له: ٩٧٢٠)

(٢٠١) وعن أنس رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رسول الله ﷺ: مَنْ لَبِسَ الحَرِيرَ في الدُّنْيَا لَمْ يَلْبَسْهُ في الآخِرَةِ. (أخرجه البخاري: ١٩٣/٧ ( ٥٨٣٢ )، ومسلم: ١٤٢/٦ ( ٢٠٧٣ ) ( ٢١ ))

حذیفةرضي الله عنه فرمايي: موږ رسول الله ﷺ د دې څخه منعه کړو چې د سرو یا سپینو زرو په لوښو کي خوراک او څښاک وکړو، همدا ډول د وریښمو او دیباجو د اغوستلو او درباندي کښېناستلو څخه یې منعه کړو.[203]

# (۵۴) لویه ګناه: د الله ﷻ د نامه پرته د بل چا په نامه حیوان حلالول

د حلالېدو په وخت کي د الله ﷻ نوم په قصده سره پرېښوول او یا د شیطان، بت او یا د یوه انسان نوم درباندي اخیستل کبیره ګناه ده، ځکه رسول الله ﷺ فرمايي: الله ﷻ پر هغه چا باندي لعنت ویلی دئ چي د حلالېدو په وخت کي د الله ﷻ د نامه پرته د بل چا نوم اخلي.[204]

همدا ډول الله ﷻ د داسي حیوان د غوښو خوړلو څخه منعه کړې ده او فرمايي:

﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ﴾[205]

---

[202] وعن أَبي موسى الأَشْعَري رضي الله عنه: أنَّ رسول الله ﷺ قَالَ: حُرِّمَ لِبَاسُ الحَرِير وَالذَّهَبِ عَلَى ذُكُورِ أُمَّتِي، وَأُحِلَّ لإِنَاثِهِمْ. أخرجه الترمذي: ۱۷۲۰، والنسائي: ۱۶۱/۸ و۱۹۰، وفي الكبرى له: ۹۴۴۹ و: ۹۴۵۰ )

[203] وعن حُذَيْفَةَ رضي الله عنه قَالَ: نَهَانَا النَّبِيُّ ﷺ أَنْ نَشْرَبَ في آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالفِضَّةِ، وأَنْ نَأْكُلَ فِيهَا، وعَنْ لُبْس الحَرِير وَالدِّيبَاج، وأَنْ نَجْلِسَ عَلَيْهِ. (أخرجه البخاري: ۱۹۴/۷ ( ۵۸۳۷ ))

[204] وعن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: لعن الله سبعة من خلقه من فوق سبع سموات فردد اللعنة على واحد منهم ثلاث مرات ولعن بعد كل واحد منهم لعنة لعنة، فقال: ملعون! ملعون! ملعون! من عمل عمل قوم لوط. ملعون! من جمع بين المرأة وبنتها! ملعون! من سب شيئا من والديه. ملعون! من أتى شيئا من البهائم. ملعون! من غير حدود الأرض. ملعون! من ذبح لغير الله. ملعون! من تولى غير مواليه. (أخرجه الحاكم: ۳۹۶/۴، رقم: ۸۰۵۳، والبيهقى فى شعب الإيمان: ۳۷۸/۴، رقم: ۵۴۷۲)

[205] سورة الانعام، الاية: ۱۲۱.

ژباړه: تاسو د هغه (حیوان د غوښو څخه) خوراک مه کوئ، چې (د حلالېدو په وخت کې) د الله ﷻ نوم نه وي ورباندې ویل سوی، باور وکړئ! چې داسي عمل فسق دئ.

# (۵۵) لویه ګناه: قوم یا نسب بدلول

رسول الله ﷺ فرمایي: چا که بل چا ته په پلار وویل او دی په دې پوهېدئ، چې دا زما پلار نه دئ جنت باندې حرام دئ.[۲۰۶]

رسول الله ﷺ فرمایي: تاسو د خپلو پلرونو څخه مخ مه اړوئ چا که د خپل پلار څخه مخ واړوئ کافر دئ. یعني څوک چې د خپل پلار څخه مخ واړوي په پلار والي يې نه بولي دومره لویه ګنا ه ده لکه کفر.[۲۰۷]

رسول ﷺ فرمایي: چا که بل چا ته په پلار وویل د الله ﷻ ورباندې لعنت دئ، نه به یې صدقې قبلېږي او نه به د عدل په بدله کې ثواب ورکول کېږي.[۲۰۸]

[۲۰۶] عن سعد بن أَبي وقاص رضي الله عنه أَنَّ النبيَّ ﷺ قَالَ: مَنِ ادَّعَى إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّهُ غَيْرُ أَبِيهِ، فالجَنَّةُ عَلَيْهِ حَرَامٌ . (أخرجه البخاري: ۱۹٤/۸ (٦٧٦٦)، ومسلم: ۵۷/۱ (٦٣) (۱۱۵))

[۲۰۷] وعن أَبي هريرة رضي الله عنه عن النبيّ ﷺ قَالَ: لاَ تَرْغَبُوا عَنْ آبَائِكُمْ، فَمَنْ رَغِبَ عَنْ أَبِيهِ، فَهُوَ كُفْرٌ. (أخرجه البخاري: ۱۹٤/۸ (٦٧٦٨)، ومسلم: ۵۷/۱ (٦٢) (۱۱۳)

[۲۰۸] وعن يزيد بن شريكِ بن طارقٍ، قَالَ: رَأيتُ عَلِيّاً رضي الله عنه عَلَى المنبَرِ يَخْطُبُ، فَسَمِعْتُهُ يقُولُ: لاَ واللهِ مَا عِنْدَنَا مِنْ كِتَابٍ نَقْرؤُهُ إِلاَّ كِتَابَ اللهِ ... وَمَنِ ادَّعَى إِلَى غَيرِ أَبيه، أَوْ انْتَمَى إِلَى غَيرِ مَوَالِيهِ، فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللهِ وَالمَلاَئِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ، لاَ يَقْبَلُ اللهُ مِنْهُ يومَ القِيَامَةِ صَرْفاً وَلاَ عَدْلاً. (أخرجه البخاري: ۲٦/۳ (۱۸۷۰)، ومسلم: ۱۱۵/٤ (۱۳۷۰) (٤٦٧)

**یادونه:**

ځیني کسان د عزت په موخه چا ته په داسي الفاظو وايي کوم چي په اصطلاح کي د پلار لپاره کارول کېږي لکه بابا او داسي نور، دا جائز دي مقصود په دې ځای کي نسب یا قوم بدلېدل نه دي.

# (٥٦) لویه گناه: کجبحثي کول

جگړه پر دوه (٢) ډوله ده: یو دا چي د حق د ښکاره کولو لپاره د یو چا سره په دلائلو سره جگړه وسي مدعا یې پرحق وي .دوهم دا چي بېځایه تجسس کول یا په یو ځرگنده موضوع کي د یو چا سره کجبحثي کول او یا د یو چا په خبرو کي خبري پیدا کول، چي مقصود یوازي د هغه ویونکي سپکول وي، حقیقت ښکاره کول یې مقصود نه وي.

دوهم ډول جگړه یا کجبحثي حرامه ده او لویه گنا ه ده، ځکه الله ﷻ فرمایي:

﴿وَلَا تُجَادِلُوٓا اَهۡلَ الۡكِتٰبِ اِلَّا بِالَّتِیۡ هِیَ اَحۡسَنُ﴾[٢٠٩]

ژباړه: تاسو د اهل کتابو سره یوازي په نېکه طریقه جگړه کوئ، په ناحقه جگړه ورسره مه کوئ.

رسول الله ﷺ فرمایي: دومره گناه دي بس ده چي ته په ناحقه جگړه کوې.[٢١٠]

---

[٢٠٩] سورة العنكبوت، الاية: ٤٦.

[٢١٠] عن ا بن عباس قال: قال رسول الله ﷺ: كفى بك إثما أن لا تزال مخاصما. (الطبراني في معجمه الكبير، ج: ١١، ص: ٥٧، ح:١١٠٣٢)

رسول الله ﷺ فرمايي: څوک چې کجبحثي کوي او په حق نه پوهېږي، همېشه به د الله ﷻ په غضب کي وي تر هغه وخته چې لاس ځني اخلي.[٢١١]

# (٥٧) لويه ګناه: اوبه منعه کول

اوبه د الله ﷻ لوی نعمت دئ. الله ﷻ دټولو شيانو ژوند په اوبو کي ايښی دئ، ځکه الله ﷻ فرمايي:

﴿وَجَعَلۡنَا مِنَ ٱلۡمَآءِ كُلَّ شَيۡءٍ حَيٍّ﴾[٢١٢]

موږ هر شی د اوبو څخه ژوندی ګرځولی دئ.

او اوبه هم د الله ﷻ په قدرت پيدا سوي دي، ځکه الله ﷻ فرمايي:

﴿قُلۡ أَرَءَيۡتُمۡ إِنۡ أَصۡبَحَ مَآؤُكُمۡ غَوۡرٗا فَمَن يَأۡتِيكُم بِمَآءٖ مَّعِينِۭ ۝٣٠﴾[٢١٣]

ژباړه: اې محمده ﷺ! دوی ته ووايه: تاسو پر دې خبره فکر کړی دئ چې که سهار ستاسو څخه د چينو اوبه منع سي بيا به يې څوک راولي؟ يعني که الله ﷻ د چينوا و څاهانو اوبه وچې کړي څوک سته چې دا اوبه بېرته راپورته کړي؟

چا ته چې الله ﷻ د اوبو نعمت ورکړی وي او يو مسلمان اړتيا ورته لري دی يې نه ورکوي سره د دې چې تر ده زياتي وي لويه ګناه ده،

---

[٢١١] عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: من جادل في خصومة بغير علم لم يزل في سخط حتى ينزع. (أخرجه البيهقى: ٦/٨٢ ، رقم: ١١٢٢٦)

[٢١٢] سورة الانبياء، الاية: ٣٠.

[٢١٣] سورة الملک، الاية: ٣٠.

ځکه رسول الله ﷺ فرمايي: چا که اوبه يا وابښه منعه کړه چې اړتيا يې نه ورته درلوده الله ﷻ به د قيامت په ورځ خپل فضل ځني منع کړي.[۲۱۴]

په يو بل حديث کي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: درې کسان دي چي الله جل جلاله خبري نه ورسره کوي، نه د رحمت په نظر ورته ګوري او نه يې تزکيه کوي، د هغوی څخه يې يو د اوبو منعه کوونکی ښوولی دئ.[۲۱۵]

# (۵۸) لويه ګناه: په پيمانه يا ترازو کي کموالی کول

څوک چي په خرڅولو او رانيولو کي دوکه کوي يعني په پوره پيمانه او په پوره کاڼي شی رانيسي او بيا يې په کمه پيمانه شی او کم کاڼي خرڅوي او پيسې د پوره تول ځني اخلي دا ډېره لويه ګناه ده، ځکه يې دې ګناه کي څو کبيرې ګناه دي: يو دا چي ظلم يې وکړ، بل دا چي حرام يې وخوړل او بل دا چي دوکه يې وکړه. د داسی کسانو په اړه الله ﷻ داسي فرمايلی دی:

---

[۲۱۴] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ عَنْ لَيْثٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنْ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: مَنْ مَنَعَ فَضْلَ مَائِهِ أَوْ فَضْلَ كَلَئِهِ مَنَعَهُ اللَّهُ فَضْلَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. (اخرجه مسند امام احمد، رقم: ۶۶۷۳)

[۲۱۵] و عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: ثَلاَثَةٌ لاَ يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ وَلاَ يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ: رَجُلٌ بَايَعَ رَجُلاً سِلْعَةً بَعْدَ الْعَصْرِ فَحَلَفَ لَهُ بِاللَّهِ لأَخَذَهَا بِكَذَا وَكَذَا فَصَدَّقَهُ فَأَخَذَهَا وَهُوَ عَلَى غَيْرِ ذَلِكَ، وَرَجُلٌ بَايَعَ إِمَامًا لاَ يُبَايِعُهُ إِلاَّ لِلدُّنْيَا فَإِنْ أَعْطَاهُ مِنْهَا وَفَى وَإِنْ لَمْ يُعْطِهِ مِنْهَا لَمْ يَفِ لَهُ، وَرَجُلٌ عَلَى فَضْلِ مَاءٍ بِالْفَلاَةِ فَيَمْنَعُهُ مِنَ ابْنِ السَّبِيلِ. (اخرجه السنن الكبرى للبيهقي، رقم: ۱۱۱۱۰)

﴿وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ ① الَّذِينَ إِذَا اكْتَالُوا عَلَى النَّاسِ يَسْتَوْفُونَ ② وَإِذَا كَالُوهُمْ أَو وَّزَنُوهُمْ يُخْسِرُونَ ③﴾[٢١٦]

ژباړه: هلاکت (یا د "ویل" شپله دي) هغو کسانو ته وي، چي په تول ترازو کي کموالی کوي. دا هغه کسان دي چي کله د خلکو څخه شیان پیمانه کوي پوره یې غواړي او کله چي یې نورو ته (د خرڅ لپاره) ورپیمانه کوي او یا یې ورتللي کم یې ورکوي.

"ویل" د یوې شپلې نوم دئ چي په دوږخ کي الله ﷻ پیدا کړې ده او عذاب یې ډېر سخت دئ.

رسول الله ﷺ فرمایلي دي: پنځه شیان په پنځو شیانو دي (یعني که چا پنځه شیان وکړه پنځه شیان به ورته راځي ). اصحابانو مبارکانو پوښتنه وکړه، چي یا رسول الله ﷺ! کوم پنځه شیان په پنځو شیانو دي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: (لومړی:) هر قوم چي په وعده وفا نه کوي الله جَلَّ جَلَالُهُ خپل دښمنورباندي مسلط کړي. (دوهم:) هر قوم چي د الله جَلَّ جَلَالُهُ د قانون پرته په بل قانون فیصله کوي الله جَلَّ جَلَالُهُ خامخا مسکنت ورباندي راولي. (درییم:) په هر قوم کي چي بې حیا، بې حجابه او زناکاره ښځي پیدا سي الله ﷻ خامخا د طاعون مرض پکښي پیداکوي یعني زیات مرګونه به پکښي کېږي. (څلورم:) هر قوم چي په تول او ترازو کي کموالی پیل کړي الله جَلَّ جَلَالُهُ خامخا شنه شیان ورباندي بندوي او وچکالي ورباندي راولي. (پنځم:) هر قوم چي زکات نه ورکوي الله ﷻ خامخا باران ورباندي بندوي.

یعني دغه پورته پنځه ګناوي که چا وکړې الله ﷻ به دغه پنځه عذابه باندي نازل کړي.[٢١٧]

---

[٢١٦] سورة المطففين، الايات: ١ - ٣.

# (۵۹) لويه ګناه: د الله ﷻ د عذاب او فيصلې څخه بېغمه کېدل

د هر انسان نېکبختي او بدبختي په ازل کي ليکل سوې ده؛ ډېر ځله به يو سړی ښه کارونه کوي مګر آخر به بد عملونه پيل کړي الله ﷻ به يې دوږخ ته واچوي او ډېر ځله به يو سړی بد کارونه کوي آخر به ښه کارونه پيل کړي الله ﷻ به يې جنت ته واچوي، ځکه رسول الله ﷺ فرمايي: يو سړی به کارونه د جنتيانو کوي تر داسي اندازې چي د ده او جنت ترمنځ به يوه لوېشت مځکه پاته وي د تقدير فيصله به ورته راوړاندي سي د دوږخيانو کارونه به پيل کړي دوږخ ته به داخل سي.[(۲۱۸)]

يعني چا چي په آخره کي کوم عمل پيل کړئ او پر هغه مړ سو هغه اعتبار لري، ځکه د الله ﷻ په فيصله هيڅوک نه دئ خبر او نه به يې څوک د فيصلې څخه بې غمه کيږي، ځکه شيطان چي د الله ﷻ د

---

[(۲۱۷)] و عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: قال رسول الله ﷺ: خمس بخمس. قالوا: يا رسول الله ﷺ! و ما خمس بخمس؟ قال: ما نقض قوم العهد إلا سلط الله عليهم عدوهم، و ما حكموا بغير ما أنزل الله إلا فشا فيهم الفقر، و ما ظهرت فيهم الفاحشة إلا أنزل الله بهم الطاعون (يعني كثرة الموت)، و لا طففوا الكيل إلا منعوا النبات و أخذوا بالسنين، و لا منعوا الزكاة إلا حبس عنهم المطر. (أخرجه الطبراني: ۴۵/۱۱، رقم: ۱۰۹۹۲)

[(۲۱۸)] عن ابن مسعود رضي الله عنه قَالَ: حدثنا رَسُول الله ﷺ وَهُوَ الصادق المصدوق: ... إِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الجَنَّةِ حَتَّى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وبيْنَهَا إلاَّ ذِرَاعٌ فَيَسْبِقُ عَلَيهِ الكِتَابُ، فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ فَيَدْخُلُهَا، وَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ حَتَّى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا إلاَّ ذراعٌ، فَيَسْبِقُ عَلَيهِ الكِتَابُ فَيعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الجَنَّةِ فَيَدْخُلُهَا. (أخرجه البخاري: ۱۶۵/۹ ( ۷۴۵۴ )، ومسلم: ۴۴/۸ ( ۲۶۴۳ ))

فیصلې څخه بېغمه سو، دا یې باور وو چې زه د شکه وتلی نېکبخته یم الله ﷻ ملعون کړئ.

مسلمان که څه هم هر څومره ښه عبادت کوي خو هره لحظه به دا فکر کوي، چي اوس د الله ﷻ فیصله راباندي و نه سي او بدبخته جوړ نه سم. یعني د الله ﷻ د فیصلې او عذاب څخه بې پروا کېدل لویه ګناه ده.

رسول الله ﷺ به داسي ډېر ویل: اې د زړونو اړونکې! زموږ زړونه ستا پر دین راټینګ کړې. یو سړي ورته وویل: یا رسول الله ﷺ! ته پر موږ بېرېږې چي د دین څخه به واوړو؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ټول زړونه د الله ﷻ په ګوتو کي دي (بلاکیفه) هغه خوا ته یې اړوي چي خوښه یې سي.[219]

همدا ډول الله ﷻ فرمایي:

﴿فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّىٰ إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا أَخَذْنَاهُمْ بَغْتَةً فَإِذَا هُمْ مُبْلِسُونَ ﴿٤٤﴾﴾[220]

ژباړه: بیا چي کله هغوی نصیحت هېر کړ کوم چي ورته سوی وو، نو موږ د خوشحالۍ او ترقۍ هر ډول دروازې ورباندي راخلاصي کړلې څو چي دوی ورباندي خوشاله سوه، موږ په ناڅاپي ډول په عذاب باندي ګرفتاره کړل او دغه مهال دوی د هر ډول مرستي څخه نااميده سول.

[219] عن جابر قال: كان رسول الله ﷺ يكثر أن يقول: يا مقلب القلوب! ثبت قلبى على دينك. فقال له بعض أهله: يا رسول الله ﷺ! أتخاف علينا وقد آمنا بك وبما جئت به؟ فقال: إن القلب بين إصبعين من أصابع الرحمن يقلبهما، يقول بهما هكذا وحرك إصبعيه. (الدارقطنى، وابن عساكر فى الصفات. كنز العمال: ١٦٨٢)

[220] سورة الانعام، الاية: ٤٤.

يعني دغه ګناهکاره انسانان چي د الله جَلَّ جَلَالُهُ د عذابه بېغمه وي هيڅ طمعه د عذاب يې نه وي ناڅاپه عذاب به باندي راسي.

## (٦٠) لويه ګناه: د الله جَلَّ جَلَالُهُ دوستان ځورول

الله جَلَّ جَلَالُهُ په قرآن کريم کي خپل دوستان ياد کړي دي او په اړه يې فرمايي:

﴿اَلَآ اِنَّ اَوْلِيَآءَ اللّٰهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ۝ لَهُمُ الْبُشْرٰى فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ لَا تَبْدِيْلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝﴾(٢٢١)

خبر اوسئ! د الله جَلَّ جَلَالُهُ پر دوستانو باندي به هيڅ بېره نه وي او نه به هم غمجن وي. هغه کسان دي چي ايمان يې راوړی دئ او تقوا والا دي. د دوی لپاره به په دنيا او آخرت دواړو کي زيري وي، د الله جَلَّ جَلَالُهُ خبري نه سي بدلېدلای، دا هم لويه کاميابي ده.

الله جَلَّ جَلَالُهُ خپلو دوستانو ته امن ورکړی دئ د دنيا او آخرت د سکون وعده يې ورسره کړې ده، که څوک دغه امن ماتوي د الله جَلَّ جَلَالُهُ د دوستانو آرام ژوند ته خطر پېښوي، الله جَلَّ جَلَالُهُ ورته په قهر کېږي.

الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمايي: څوک چي زما د يوه دوست سپکاوی وکړي زما سره يې د جنګ اعلان وکړی.(٢٢٢)

همدا ډول لکه څرنګه چي په تيرو حديثونو کي ذکر سوه چي مسلمان ته ضرر رسول لويه ګناه ده او د رسول الله ﷺ په مبارکو ويناوو

---

(٢٢١) سورة يونس، الايات: ٦٢ - ٦٤.

(٢٢٢) اخرجه البخاري - في الرقاق باب: ٣٨، واحمد في المسند: ٦ / ٢٥٦.

کي د ډيرو سختو سزاوو وعده ورسره سوې ده، نو ځوک چي د الله ﷻ دوستانو ته ضرر رسوی دا خو د عامو مسلمانانو تر ځورولو لويه گناه ده.

# (٦١) لويه گناه: د جماعت لمونځ نه کول

د حضرت عبدالله بن مسعود ؓ څخه روايت دئ، چي رسول الله ﷺ هغو کسانو ته وويل کوم چي جماعت يې پرې ايښی وو: زه اراده لرم چي يو سړي ته امر وکړم چې لمونځ خلگو ته ورکړي بيا د هغه کسانو کورونه وسوځي چې د جماعت څخه پاتېږي.[٢٢٣]

رسول الله ﷺ فرمايي: چي سراسر ظلم، نفاق او کفر دئ، ځوک چي د الله ﷻ و لوري ته د بلني آواز واوري او جماعت ته ولاړ نه سي.[٢٢۴]

ابن عباس ؓ روايت کړی دئ، چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: ځوک چي د جماعت آواز واوري او د عذر پرته مسجد ته ولاړ نه سي (يعني کور يې وکړي)، د ده لمونځ نه قبلېږي. دوی ورته وويل: عذر څه شي دئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: ېره يا ناروغي ده.[٢٢۵]

---

[٢٢٣] عن عبد الله بن مسعود ؓ أن النبي ﷺ قال لقوم يتخلفون عن الجماعة: لقد هممت أن آمر رجل يصلي بالناس ثم أحرق على رجال يتخلفون عن الجماعة بيوتهم. (مصنف ابن شيبة، رقم: ٥٥٨٢)

[٢٢٤] عن معاذ بن انس ؓ عن رسول الله ﷺ انه قال: الجفاء كل الجفآء، و الكفر و النفاق، من سمع منادي الله ينادي الي الصلوة فلا يجيبه. (أخرجه أحمد: ٤٣٩/٣، رقم: ١٥٦٦٥، والطبرانی: ١٨٣/٢٠، رقم: ٣٩٤)

[٢٢٥] عن ابن عباس ؓ قال: قال رسول الله ﷺ: من سمع الندآء فلم يمنعه من اتباعه عذر. قالوا: وما العذر؟ قال: خوف او مرض لم تقبل منه الصلوة التي صلي. (أخرجه عبد الرزاق: ٤٩٧/١، رقم: ١٩١٤)

د ابن عباس رضي الله عنه څخه چا پوښتنه وکړه، چې یو څوک ټوله ورځ روژه نیسي او ټوله شپه عبادت کوي مګر د جماعت او جمعې لمانځه ته نه ځي (د ده څه حکم دئ)؟ ابن عباس رضي الله عنه ورته وفرمایل: دا سړی به په دوږخ کې وي.[226]

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: چا که درې جمعې جماعت د سستیت له امله پرېښودئ الله جل جلاله به یې پر زړه مهر ورولګوي.(بیا به د حق او باطل ترمنځ فرق نه سي کولای او نه به د جنت لارپیدا کولای سي).[227]

# (٦٢) لویه ګناه: داسې وصیت کول چې ځیني قریبان یې د میراث څخه محروم سي

یو څوک چې مړکېږي د مرګ په حالت کې د پور د ادا کولو وصیت کوي څو قریبان یې د ده د مال څخه غاړه ورو باسي، یا داسې وصیت کوي چې یوه اندازه پیسې ورپسې خیرات سي څو د آخرت ګټه یې سي، یا یې په قریبانو کې و یو چا ته د یوې خاصې برخې وصیت وکړي چې دومره اندازه مال زما دغه فلاني قریب ته ورکړي، داسې وصیت هر مسلمان کولای سي خو څو خبرې پکښې د یادولو وړ دي:

١. وصیت د ده په درېیمه برخه مال کې کېږي یعني دا چې د ده د وصیت مصرف به د ده د مال تر درېیمې حصې زیات نه وي،

---

[226]عن ابن عباس رضي الله عنه انه سئل عن رجل یصوم النهار ویقوم اللیل، ولا یشهد الجماعة ولا الجمعة، فقال: هذا في النار. (أخرجه عبد الرزاق: ٥١٩/١، رقم: ١٩٨٩)

[227]و قال صلی الله علیه وسلم: من ترك ثلاث جمع تهاونا بها طبع الله على قلبه.(أخرجه ابن أبى شيبة: ٤٧٩/١، رقم: ٥٥٣٣، وأحمد: ٤٢٤/٣، رقم: ١٥٥٣٧، وأبو داود: ٢٧٧/١، رقم: ١٠٥٢)، والترمذى: ٣٧٣/٢، رقم: ٥٠٠)

که زیات وو هغه وصیت به پوره نه عملي کوي، بلکې دومره اندازه به عملي کوي چې د ده درېیمه برخه مال کېږي، په درېیمه برخه کې چې هر څومره عملي سو بس نور به نه عملي کوي که څه هم ده د ټول مال وصیت کړی وي هغه صحیح نه دئ، بلکې د ده د مال د درېیمي څخه به د ده وصیت پوره کېږي که ټول وصیت پوره سو که نه سو.

۲. په قریبانو کې د مال ورکولو وصیت هغه چا ته کولای سي، چې هغه قریب یې د ده په میراث کې حق نه لري. مثلا: یو سړی زامن هم لري او وريرونه هم لري، د ده زامن چې موجود وي وراره یې میراث نه سي وړلای. دی کولای سي چې وصیت وکړي چې زما وراره ته زما د درېیمي څخه دومره مال ورکړئ او د زوی لپاره یې نه سي کولای، ځکه هغه خپله حصه لري، په دې کې هم یو استثنائي صورت سته.

۳. وصیت به د اصلاح په نیت کوي، په فاسد نیت به وصیت نه کوي.

فاسد نیت دا دئ، چې یو څوک د دې لپاره وصیت وکړي، چې قریبانو ته تاوان ورسوي یعني دا چې دی خپله درېیمه په دې نیت خیراتوي، چې د قریبانو ونډه یې لږ -لږ ورسېږي یا یې یو چا ته د دې لپاره ورکوي چې قریبان یې په حق کې کم سي او یا ووایي، چې د فلانی پر ما پور باندي دئ او هغه پورورباندي نه وي. هو! په درېیمه برخه کې دی صلاحیت لري چې خپل د آخرت ګټې لپاره یې وصیت وکړي خو نیت به یې د آخرت د ګټې وي، نیت به یې د دې نه وي چې کوم قریب ته حصه ورکمه کړي که څه هم د ده د هغه څخه هر څومره خوابده وي، که یې دا کار وکړی دا کبیره ګناه ده، ځکه الله ﷻ فرمایي:

﴿يُوصَىٰ بِهَآ أَوۡ دَيۡنٍ غَيۡرَ مُضَآرٍّۚ وَصِيَّةٗ مِّنَ ٱللَّهِۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَلِيمٞ ۝١٢﴾(۲۲۸)

ژباړه: ... د هغه وصیت تر پوره کولو وروسته کوم چې سوی دئ او د هغه پور تر ادا کولو وروسته کوم چې (پر وفات سوي کس) باندي دئ (دغه وصیت او پور به) د ضرر لپاره نه وي، دا د الله جل جلاله د لوري حکم دئ او الله جل جلاله زیات علم لرونکي او پوره صبر لرونکی دئ.

رسول الله ﷺ فرمايي: که یو سړی او ښځه شپېته کاله د الله جل جلاله عبادت وکړي او بیا مړه سي، مګر داسي وصیت یې کړی وي چې قریبانو ته پکښي ضرر وي دغه سړي او ښځي ته دوږخ واجب دي.(۲۲۹)

په ځینو روایتو کي راغلي دي، چې یو چا به اویا کاله عبادت کړی وي مګر دا چې په وصیت کولو سره د خپلو قریبانو حصه ورکمه کړې وي او په وصیت کولو کي یې لا نیت دا وي، چې حصه ورکمه کړي د دغه سړي خاتمه به الله جل جلاله بده کړي، ځای به یې دوږخ سي. او یوه سړي به اویا کاله د شر عمل کړی وي مګر په وصیت کي د عدل څخه کار واخلي صحیح وصیت وکړي الله جل جلاله به یې خاتمه نېکه کړي، ځای به یې جنت سي.(۲۳۰)



---

(۲۲۸) سورة النساء، الاية: ۱۲.

(۲۲۹) و عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: إن الرجل أو المرأة ليعمل بطاعة الله ستين سنة ثم يحضرهما الموت فيضاران في الوصية فتجب لهما النار، ثم قرأ أبو هريرة هذه الآية: من بعد وصية يوصى بها أو دين غير مضار. (الترمذي في سننه، ج: ٤، ص: ٤٣٢، ح:٢١١٧)

(۲۳۰) إن الرجل ليعمل بعمل أهل الخير سبعين سنة فإذا أوصى حاف فى وصيته فيختم له بشر عمله فيدخل النار، وإن الرجل ليعمل بعمل أهل الشر سبعين سنة فيعدل فى وصيته فيختم له بخير عمله فيدخل الجنة. (أخرجه أحمد: ٢٧٨/٢، رقم: ٧٧٢٨، وابن ماجه: ٩٠٢/٢، رقم: ٢٧٠٤)

# (٦٣) لويه ګناه: مکر او چم کول

الله جل جلاله فرمايي:

﴿وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ﴾(٢٣١)

چم كول يوازي خپله چم کوونکی ځپي.

يعني څوک چې يو چاته چم کوي په هغه چم کې به دی خپله لوېږي او يا به په ده هم دغسي چم کېږي.

رسول الله ﷺ فرمايي: مکر کوونکی او چم کوونکی به په دوږخ کې وي.(٢٣٢)

رسول الله ﷺ پنځه کسان دوږخيان وښوول يو يې د هغوی څخه هغه سړی وښووی چې چم کونکی وي.(٢٣٣)

# (٦٤) لويه ګناه: د مسلمانانو جاسوسي كول

څوک چې د مسلمان پټ راز ښکاره کوي يا يې عيب لټوي بيا يې ښکاره کوی لويه ګناه ده، د مسلمان بې عزتی ده او تاوان ورته رسول

---

(٢٣١) سورة فاطر، الاية: ٤٣.

(٢٣٢) عن قيس بن سعد قال: لولا إني سمعت رسول الله ﷺ: المكر و الخديعة في النار لكنت من أمكر الناس الجراح بن مليح هذا هو النهراني حمصي. (البيهقي في شعب الايمان، رقم: ١١١٠٦)

(٢٣٣) عن عياض بن حمار أن النبي ﷺ قال: أهل النار خمسة: الضعيف الذي لا يؤبه له وهو فيكم تبع لا يبغون أهلا ولا مالا. قلت: ويكون ذلك يا أبا عبدالله؟! قال: نعم، والله لقد أدركتهم في الجاهلية وإن الرجل ليرعى على الحي ما به إلا وليدتهم يطؤها، ورجل لا يصبح ولا يمسي إلا وهو يخادعك عن أهلك ومالك ورجدل لا يخفى عليه شيء إلا خانه وإن دق وذكر الكذب وذكر البخل. (صحيح ابن حبان، رقم:٧٤٨٣)

دي. مخکې دا حديث شريف بيان سوی دئ، چې رسول اللهﷺ فرمايلي وه: د مسلمان پر مسلمان دا حق دئ چې نه به يې سپکوي او نه به يې بې عزته کوي.

همدا ډول مسلمان ته جائزه نه ده چې د مسلمانانو حالات کافرانو ته ښکاره کړي، ځکه مسلمان چې هر څومره بد سي خو تر کافر ښه دئ. کله چې حاطب بن ابي بلتعه داسي کار وکړئ حضرت عمر رضي الله عنه يې د وژلو اراده وکړه خو رسول الله ﷺ منعه وکړه، ځکه دی د بدر په غزاء کي حاضر سوی وو، پوره قصه يې په لاندي ډول وه:

حاطب رضي الله عنه يو خط د مکې قريشو ته ولېږئ. په خط کي يې ليکلي وه چې مسلمانان پر تاسو باندي د يوې لوي حملې پلان لري، رسول اللهﷺ د جنګ لپاره تياري نيسي. زه پوهېږم چې بل ځای يې مطلوب نه دئ پرته له دې چې پر تاسو به جنګ کوي. فکر وکړئ!

دغه خط يې يوې ښځي ته يې په لاس ورکړی وو. هغه ښځه د مکې لوري ته روانه سوه. رسول اللهﷺ ته الله جل جلاله وحي وکړې د دغه حال معلومات يې ورکړئ. رسول اللهﷺ حضرت علي رضي الله عنه او درې نور اصحابان رضي الله عنهم ولېږل تر څو د دغې ښځي مخته ورسي او خط بېرته راوګرځوي. مبارک اصحابان رضي الله عنهم چې مخته ورغلل ښځه يې د اوښ څخه راشوه کړه چې د اوښ په کجاوه کي ناسته وه، بيا يې پوښتنه ځني وکړه چې ستا سره خط سته؟ هغې ښځي په جواب کي وويل: زما سره هيڅ خط نه سته. حضرت علي رضي الله عنه ورته وفرمايل: قسم په الله جل جلاله چې د الله جل جلاله رسولﷺ دروا غ نه وايي او نه موږ درواغ وايو ته به موږ ته خط راکوې او يا به دي بربنډه کړو د خط پيدا کولو لپاره. ښځي چې د ده مبارک خبري واؤرېدې پوه سوه چې د خلاصون لاره نه سته پرته له دې

چي خط ورکړم نو خط يې ورکړ. علي رضي الله عنه د ملګرو سره يوځای رسول الله ﷺ ته راوړئ.

رسول الله ﷺ چي وکاتئ د حاطب رضي الله عنه له لوري څخه د مکې قريشو ته ليکل سوی وو او د جنګ حال پکښې ليکل سوی وو. رسول الله ﷺ حاطب رضي الله عنه راوغوښتی پوښتنه يې ځني وکړه چي ولې دي دا خط ليکلی دئ؟ ده په جواب کي ورته وويل: په الله جل جلاله قسم کوم چي نه کافر سوی يم او نه منافق يم او نه په ما کي کومه تبديلي راغلې ده، يوازي مي په دې موخه خط وليږئ چي زما اهل و عيال هوري دي د مکې کافران يې حفاظت کوي زما سره يې احسان کړی دئ، ما فکر وکړئ چي دا يو ډول احسان دئ زه به يې ورسره وکړم چي د دوی د احسان بدله سي.

حضرت عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه اجازه وغوښتل چي د حاطب رضي الله عنه سر ور پرې کړي، ځکه ده د الله جل جلاله او رسول الله ﷺ سره خيانت کړی دئ. رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ګوره! دغه صحابي د بدر په غزاء کي حاضر سوی دئ ته څه خبر يې چي الله جل جلاله و هغه کسانو ته ويلي دي چي بدر ته حاضر سوي وه: تاسو چي څه غواړئ زه يې درکوم. عمر رضي الله عنه د دغه خبري په اوريدو سره وژړل او دا يې وويل الله جل جلاله او د هغه رسول ﷺ ښه پوهيږي.(٢٣٤)

(٢٣٤) البخاري - الصحيح: ٤ \ ٧٢، حديث: ٤٢٧٤، مسلم - الصحيح: ٢ \ ١٧٠، ٤ \ ١٩٢١ - ١٩٢٢، حديث: ٢٤٩٤، ابن هشام - السيرة: ٢ \ ٣٩٩، الواقدي - مغازي: ٢ \ ٧٩٨ - ٧٩٩، ابن كثير - البداية والنهاية: ٤ \ ٣٣٣ من حديث البيهقي . فانزل الله تعالي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَاءَكُمْ مِنَ الْحَقِّ يُخْرِجُونَ الرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَنْ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ رَبِّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِي سَبِيلِي وَابْتِغَاءَ مَرْضَاتِي تُسِرُّونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَأَنَا أَعْلَمُ بِمَا أَخْفَيْتُمْ وَمَا أَعْلَنْتُمْ وَمَنْ يَفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ ۝﴾ [سورة الممتحنة، الاية: ١] وانظر : البخاري - الصحيح ( فتح الباري - ٤٢٧٤، حديث : ٣٩٨٣ )

# (٦٥) لويه گناه: اصحابو كراموته بدويل

زموږ د اهل سنت والجماعة داسي عقيده ده، چي ټول اصحاب نېكان او عادلان دي د هيڅ صحابي په اړه بد ويل جائز نه دي، كه يې څوک په اړه بد وايي يا ښكنځل ورته كوي كبيره گناه ده ځكه ځيني ډلي سته چي بعضو اصحابان بد بولي، د لعنت كلمې ورته كاروي، ښكنځل ورته كوي. مؤمن ته پكار ده چي په كلكه ځان ځني وساتي، ځكه رسول الله ﷺ فرمايي:

تاسو زما اصحابو ته ښكنځل مه كوئ زما دي د الله جل جلاله په ذات قسم وي كه چيري د اُحد د غره په اندازه يو څوک سره زر خيرات كړي د يوه صحابي مرتبې نه سي رسېدای او نه به يې نيمايي ته ورسېږي.[٢٣٥]

څوک چي اصحابو ته بد وايي په حقيقت كي د رسول الله ﷺ په وړاندي گستاخانه عمل دئ.

مولانا زكريا رحمه الله په خپل كتاب "حكايات صحابه" كي د اصحابانو پر محبت زيات ټينگار كړی دئ، چي ځيني برخي يې په كټ مټ ډول دلته رانقلوم:

نبي ﷺ فرمايي: زما څخه وروسته په ابوبكر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه پسي اقتدا كوئ. په يوه حديث كي راغلي دي، چي نبي ﷺ فرمايي: زما اصحاب رضي الله عنهم د ستورو په شان دي په هر يوه پسي چي اقتدا وكړئ

---

[٢٣٥] عن أبي سعيد قال: قال النبي ﷺ:لا تسبوا أصحابي فلو أن أحدكم أنفق مثل أحدٍ ذهباً ما بلغ مد أحدهم ولا نصيفه. (اخرجه البخارى: ١٣٤٣/٣، رقم: ٣٤٧٠، ومسلم: ١٩٦٧/٤، رقم: ٢٥٤١، وأبو داود: ٢١٤/٤، رقم: ٤٦٥٨، والترمذى: ٦٩٥/٥، رقم: ٣٨٦١)

سمه لار به پیدا کړئ. ډیرو محدثینو په دغه حدیث کې خبرې کړې دي په همدې وجه پر قاضي عیاض رحمة الله علیه باندې اعتراض دئ، چې دغه حدیث یې نقل کړی دئ، خو ملا علي قاري رحمة الله علیه لیکلي دي، چې ممکنه ده چې د ده په اند به د بیلو طریقو له امله د اعتبار وړ وي یا په دې وجه چې دا د فضائلو ځای دئ، د فضلیت په ځای کې کمزوری حدیث نقل کول هم جائز دئ.

حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې نبي صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي، چې زما اصحاب رضي الله عنهم داسې مثال لري لکه په خوراک کې مالګه چې دغه خوراک بې له مالګې ښه کیداې نه سي. نبي صلی الله علیه وسلم فرمایي: زما د اصحابو رضي الله عنهم په اړه د الله جل جلاله څخه وبېرېږئ دوی د ملامتیا نښه مه جوړوئ. څوک چې د دوی سره محبت کوي هغه زما سره محبت کوي او څوک چې د دوی سره کینه لري هغه زما سره کینه لري، چا چې دوی ته تکلیف ورکړئ هغه ما ته تکلیف راکړئ، چا چې ما ته تکلیف راکړئ هغه الله جل جلاله ته تکلیف ورکړئ او څوک چې الله جل جلاله ته تکلیف ورکړي د الله جل جلاله په راکشولو کې به راسي.

نبي صلی الله علیه وسلم فرمایي: څوک چې اصحابو ته ښکنځل کوي پر دغه کس د الله جل جلاله، ملایکو او ټولو انسانانو لعنت دئ او د دغه سړي نه فرض قبلیږي او نه نفل. نبي صلی الله علیه وسلم فرمایي: الله جل جلاله ټوله انسانان راچڼ کړل د انبیاوو علیهم السلام څخه پرته په دوی ټولو کې یې دغه څلور کسان غوره کړه: حضرت ابوبکر رضي الله عنه، حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه او دوی یې زما پر ټولو اصحابانو رضي الله عنهم باندې بهتر وګرځول.

ابو سختياني رحمة الله عليه فرمايي: کوم چا چي د ابوبکر رضي الله عنه سره محبت وکړئ هغه خپل دين سيده کړی. چا چي د عمر رضي الله عنه سره محبت وکړئ نو د دين روښانه لاره يې پيدا کړه. چا که د عثمان رضي الله عنه سره محبت وکړئ د الله جل جلاله په رڼا سره روښانه سو او چا چي د علي رضي الله عنه سره محبت وکړئ دغه کس نو د دين رسۍ ونيول. څوک چي د اصحابانو رضي الله عنهم ستاينه کوي دغه کس د نفاق څخه پاک دئ، څوک چي د اصحابانو رضي الله عنهم بې ادبي کوي منافق، بدعتي او د سنتو مخالف دئ. زما سره دا بېره ده چي هيڅ عمل به قبول نه سي تر څو د اصحابانو رضي الله عنهم سره محبت پيدا نه سي او د دوی په اړه يې زړه پاک نه سي.

په يو حديث کي راغلي دي، چي نبي صلى الله عليه وسلم فرمايي: اې خلگو! زه د ابوبکر رضي الله عنه څخه خوشحاله يم تاسو د ده مرتبه وپېژنئ، زه د عمر رضي الله عنه، عثمان رضي الله عنه، علي رضي الله عنه، طلحة رضي الله عنه، زبير رضي الله عنه، سعد رضي الله عنه، سعيد رضي الله عنه، عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه او عبيده بن الجراح رضي الله عنه څخه خوشحاله يم تاسو د دوی مرتبه وپېژنئ. اې خلگو! کوم څوک چي د بدر او اُحد په غزاء کي شريک سوي دي الله جل جلاله و هغوی ته بخښنه کړې ده، تاسو زما د اصحابو رضي الله عنهم په اړه زما لحاظ کوئ او د هغو خلگو په باره کي زما لحاظ کوئ چي د دوی لوڼي زما په نکاح کي دي او يا زما لوڼي د دوی په نکاح کي دي، داسي نه چي دغه خلگ د قيامت په ورځ ستاسو څخه د يو څه ظلم مطالبه وکړي او هغه به بيا نه بخښل کېږي.

په يوه حديث کي راغلي دي، چي نبي صلى الله عليه وسلم فرمايي: زما د اصحابانو، زومانو او نورو اصحابانو په اړه زما لحاظ کوئ، څوک چي د دوی په اړه زما لحاظ وکړي الله جل جلاله به د دغه کس په دنيا او

آخرت کي حفاظت وکړي او ځوک چي زما لحاظ و نه کړي الله ﷻ د هغه کس څخه بېزاره دئ او د چا څخه چي الله ﷻ بېزاره سي کېداى سي چي پر يو ځه باندي ونيول سي.

د نبي ﷺ دا ارشاد هم دئ چي نبي ﷺ فرمايي: ځوک چي زما د اصحابو رضي الله عنهم په اړه زما لحاظ وکړي د قيامت په ورځ به زه د ده محافظ يم.

په يوه بل حديث کي راغلي دي، چي نبي ﷺ فرمايي: ځوک چي زما د اصحابو رضي الله عنهم په اړه زما لحاظ و نه کړي حوض کوثر ته به را نه وستل سي، ما به يوازي د ليري څخه ووينې.

سهل بن عبدالله رحمة الله عليه فرمايي: ځوک چي د نبي ﷺ د اصحابانو رضي الله عنهم تعظيم او درنښت نه کوي هغه پر نبي ﷺ ايمان نه دئ راوړی.(٢٣٦)

## (٦٦) لويه گناه: د محمد ﷺ د نامه د اورېدو په وخت کي درود نه ويل

حضرت کعب بن عجرة رضي الله عنه وايي چي نبي ﷺ موږ ته وفرمايل: منبر ته رانژدې سئ. نو موږ منبر ته رانژدې سوو. نبي ﷺ منبر ته وختی پر اوله زينه چي يې پښه کښېښودل "آمين" يې وواېه. بيا چي يې پر دوهمه زينه پښه کښېښودل "آمين" يې وواېه. بيا چي يې پر درېيمه زينه پښه کښېښوده "آمين" يې وواېه. کله چي نبي ﷺ د منبر څخه راکښته سو موږ پوښتنه ځني وکړه، چي يا رسول الله ﷺ! نن موږ ستا

(٢٣٦) ذكره مولانا زكريا رحمة الله عليه في حكايات الصحابة، ص: ٢٣٠، ط: قندهار.

څخه (د منبر ختلو په وخت کې) داسې څه واورېدل چې نور وخت مو نه وه اورېدلي؟

رسول الله ﷺ راته وویل: جبرئیل علیه السلام زما مخته راغلئ (ما چې د منبر پر اوله زینه پښه کښېښوده) ده راته وویل: هغه څوک دې هلاک وي چې د روژې میاشت راسي او ده ته مغفرت نه وسي. ما ورته وویل: آمین! کله چې ما پر دوهمه زینه پښه کښېښوده جبرئیل علیه السلام راته وویل: هغه سړی دې هلاک وي چې ستا نوم د ده په وړاندې ذکر سي او دی پر تا باندې درود و نه وایي. ما ورته وویل: آمین! کله چې ما پر درېیمه زینه باندې پښه کښېښوده جبرئیل علیه السلام راته وویل: هغه څوک دې هلاک وي چې مور او پلار دواړه او یا یو د دوی څخه د سپین ږیروالي په وخت کې ولري او دی په دوی باندې جنت ته داخل نه سي. ما ورته وویل: آمین! (۲۳۷)

په دې حدیث کې جبرئیل علیه السلام درې ښراوي کړي دي او نبي ﷺ "آمین" پر ویلی دئ. لومړی خو د جبرئیل علیه السلام ښراوي څه اسانه خبره نه ده بیا چې نبي علیه السلام "آمین" پر ویلی دئ، نو څه حال به یې وي؟ نو سختی یې ښکاره دي. الله جل جلاله دې په خپل فضل سره موږ ته د دې درو ښراوو څخه د ساتني توفیق راکړي او د دې بدو کارو څخه دې مو الله جل جلاله وساتي که نه نو بیا زموږ په هلاک کېدو کې هیڅ شک نه سته.

(۲۳۷) عن کعب بن عجرة رضی الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: احضروا المنبر فحضرنا فلما ارتقى درجة، قال: آمین! فلما ارتقي الدرجه الثانية، قال: آمین! فلما ارتقى الدرجة الثالثه، قال: آمین! فلما نزل قلنا: يا رسول الله ﷺ! لقد سمعنا منک الیوم شیئا ماکنانسمعه. قال: ان جبرئیل عرض لي بعد من ادرک رمضان فلم یغفرله، قلت: آمین! فلما رقیت الثانية قال: بعد من ذکرت عنده فلم یصل علیک. قلت: آمین! فلما رقیت الثالثة قال: بعد من ادرک ابویه الکبر عنده او احدهما فلم یدخلاه الجنة. قلت آمین!

په پورته روایت کې یوه ښرا د هغه چا لپاره سوې ده چې په وړاندې یې د نبيﷺ مبارک نوم ذکر سي او دی درود شریف نه ووایي. دغه مضمون په نورو روایتو کې هم راغلی دئ. په همدې وجه ځینو علماوو ویلي دي چه کله د نبيﷺ نوم مبارک ذکر سي نو درود ویل واجب دئ.

د پورتني حدیث پرته په نورو روایتو کې هم د هغه چا لپاره ډېرې سزاگانې راغلي دي چې په وړاندې یې د نبيﷺ نوم ذکر سي او دی درود و نه وایي. په ځینو حدیثو کې دغه کس د بخیلانو په ډله کې داخل بلل سوی دئ. همدا ډول بې وفا، د جنت د لارې هېرېدونکي آن تر دې چې په دوږخ کې داخل او بې دینه ورته ویل سوي دي او دا هم راغلي دي چې دغه کس به د نبيﷺ مخ و نه ویني.

تحقیق کوونکو عالمانو که څه هم د دې حدیثونو تأویل کړی دئ خو پر نبيﷺ باندې د درود پرېښودونکي چا لپاره نبيﷺ کوم ښکاره سختې بیان کړې ده، د دې زغمل گران کار دئ. ولې به نه وي؟! ځکه چې د نبيﷺ احسانات د خپل امت لپاره تر دې هم زیات دي چې په لیکلو او ویلو کې نه راځي، د دې څخه علاوه رسول اللهﷺ پر امت باندې دومره حقونه لري چې و درود نه ویونکي ته هر څومره سزاوې وویل سي ورسره مناسبې دي.

او درود شریف دومره فضائل لري چې د هغو څخه بې برخې کېدل ځانته بدبختي ده تر دې به نو لوی فضیلت چیرې وي چې څوک پر نبيﷺ باندې یو وار درود شریف ووایي اللهﷻ پر هغه باندې لس واره رحمت نازلوي. د دې سره – سره د ملایکو دعا، د گناهونو

بخښنه، د درجو لوړېدل، د اُحد د غره په څېر ثواب پیدا کول، شفاعت ورته واجبېدل او داسي نور هم د درود ویلو پایله ده. همدا ډول د الله ﷻ رحمت تر لاسه کول، د الله ﷻ د غوسې څخه خلاصون، د قیامت د سختیو څخه خلاصون، د مرگ په وخت کي په جنت کي خپل ځان لیدل او داسي نور د درود شریف ویلو ځانگړي خصوصیتونه دي.

همدا ډول په درود شریف ویلو سره مسکنت لیري کېږي، د الله ﷻ او د رسول ﷺ په دربار کي نژدېکت پیدا کېږي، پر دښمنانو باندي برلاسي پیدا کېږي، د زړه څخه نفاق او زنگ لیري کېږي، د خلگو محبت ورسره پیداکېږي. همدا ډول په ډېرو حدیثونو کي د درود شریف نور فضائل هم راغلي دي. د فقهي شریفي عالمان په دې خبره په اتفاق دي چي په ټول عمر کي یو ځل عملاً درود شریف ویل واجب دئ او ځینو علماوو اختلاف کړی دئ، وایي چي د نبي ﷺ د هر ځلي نامه ذکر کېدو سره درود شریف ویل واجب دئ او ځینو بیا ویلي دي چي مستحب دي.[٢٣٨]

# (٦٧) لویه گناه:
## قرآن کریم تر یادولو وروسته هېرول

څوک چي قرآن کریم یاد کړي بیا یې یو آیت او یا یو حرف هېر کړي کبیره گناه ده او که ټوله هېرکړي خو بیخي لویه گناه ده، ځکه رسول الله ﷺ فرمایي: ما ته د خپل امت ټولي بدۍ او نېکۍ وښوول

---

[٢٣٨] ذکره مولانا زکریا رحمه الله في فضائل رمضان.

سوې، خو ما تر قرآن کريم هېرولو لويه ګناه نه ده ليدلې که څه هم يو حرف او يو آيت وي. (۲۳۹)

رسول اللهﷺ فرمايي: د قيامت په ورځ چې زما امت ته په بدو اعمالو کې پوره سزا ورکول کېږي او ډېره لويه ګناه د قرآن کريم د يوه سورة هېرول دي وروسته تر يادولو. (۲۴۰)

رسول اللهﷺ فرمايي: کوم سړی چې قرآن زده کړي بيا يې هېر کړي د قيامت په ورځ به د اللهﷻ سره په داسې حالت کې مخ سي چې فلج وهلی به وي. (۲۴۱)

# (٦٨) لويه ګناه: د اړتيا پرته عورت لڅول

د هرنارينه او ښځې لپاره عورت پټول فرض دئ. د ښځې ټوله بدن عورت دئ، د مخ، لاسو او پښو پرته، دغه غړي هم يوازې هغه چا ته ښکاره کولای سي چې د دې د تل لپاره نکاح ورسره حرامه وي او نامحرمه ته دغه غړي ښکاره کول هم حرام دي.

د نارينه عورت د نامه څخه تر زنګنو پورې دئ.

د نارينه او ښځې دواړو لپاره عورت ښکاره کول کبيره ګناه ده،

---

(۲۳۹) عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ: عُرِضَتْ عَلَيَّ أُجُورُ أُمَّتِي حَتَّى الْقَذَاةُ يُخْرِجُهَا الرَّجُلُ مِنَ الْمَسْجِدِ، وَعُرِضَتْ عَلَيَّ ذُنُوبُ أُمَّتِي فَلَمْ أَرَ ذَنْبًا أَعْظَمَ مِنْ سُورَةٍ مِنَ الْقُرْآنِ أَوْ آيَةٍ أُوتِيَهَا رَجُلٌ ثُمَّ نَسِيَهَا. (اخرجه ابوداؤد - في الصلوة باب: ١٦، والترمذي - في الثواب القرآن باب:١٩)

(۲٤۰) عَنْ أَنَسٍ أَنَّهُ ﷺ قَالَ: إِنَّ مِنْ أَكْبَرِ ذَنْبٍ تُوَافَى بِهِ أُمَّتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَسُورَةً مِنْ كِتَابِ اللهِ كَانَتْ مَعَ أَحَدِهِمْ فَنَسِيَهَا. (اخرج محمد بن نضر عن انس. أخرجه ابن عدى:٢٨٦/٤ )

(۲٤۱) عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ:مَا مِنْ أَحَدٍ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ ثُمَّ يَنْسَاهُ إِلَّا لَقِيَ اللَّهَ وَهُوَ أَجْذَمُ. (اخرجه ابوداؤد - في الوتر باب:٢١، والايمان باب: ١)

ځکه رسول اللهﷺ فرمايي: د قضا حاجت پر مهال دې دوه کسان دومره نژدې نه سره کښېني چې يو د بله عورت ته سره گوري ځکه اللهﷻ دغه کار ډېر بد بولي.[۲۴۲]

رسول اللهﷺ فرمايي: د لڅوالي څخه ځان وساتئ! ځکه ستاسو سره داسي څوک سته چې د قضا حاجت د پوره والي تر مهال پرته ستاسو څخه نه جلا کېږي، نو کله چې يو څوک کوروالي کوي د دغه چا څخه دي حيا کوي او د هغه درنښت دي کوي. يعني کوښښ دي کوي چې هيڅ وخت خپل عورت لڅ نه کړي که څه هم يوازي وي.[۲۴۳]

رسول اللهﷺ فرمايي: تاسو خپل ستر پټ کړئ که د خپلي ښځي او يا مېنځي په وړاندي لڅ سي پروا نه کوي. اصحابو کرامو پوښتنه وکړه: يا رسول الله ﷺ! که يو سړی په خونه کي يوازي وي نو هم خپل عورت لڅول ورته جائز نه دئ؟ رسول اللهﷺ وفرمايل: اللهﷻ د دې ډېر مستحق دئ چې انسان حيا ځني وکړي. يعني يوازي به هم عورت نه لڅوي.[۲۴۴]



---

[٢٤٢] وعن ابي سعيد الخدري قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: لا يخرج الرجلان يضربان الغائط كاشفان عورتهما فإن الله يمقت على ذلك. (اخرجه ابن ماجة، رقم: ٣٢٤)

[٢٤٣] عن ابن عمر أن رسول الله ﷺ قال: إياكم والتعري فإن معكم من لا يفارقكم إلا عند الغائط، وحين يفضي الرجل إلى أهله فاستحيوهم وأكرموهم. (الترمذي في سننه، ج: ٥، ص: ١١٣، ح: ٢٨٠٠)

[٢٤٤] اخرجه ابوداؤد - في الغسل باب: ٢٠، والترمذي - في الادب باب: ٢٢- ٣٩، وابن ماجة - في النكاح باب:٢٨.

# (٦٩) لويه گناه: د لمونځ كوونكي مخ ته تېرېدل

رسول الله ﷺ فرمايي: كه يو سړى په دې پوه سي چي د لمونځ كوونكي و مخ ته تېرېدل څومره لويه گناه ده، نو ځلويښت (كاله يا مياشتي) به ودرېږي يعني انتظار به وكړي خو د لمونځ كوونكي مخ ته به تېر نه سي.(٢۴۵)

رسول الله ﷺ فرمايي: كه يو سړى سل كاله ودرېږي د ده لپاره غوره دئ تر دې چي د ورور مسلمان مخ ته تېرسي او هغه لمونځ كوي.(٢۴٦)

## يادونه:

كوم كس چي لمونځ كوي پكار دا ده، چي داسي ځاى لمونځ وكړي چي هلته خلك نه تېرېږي او كه د دې خطره وه چي خلك به تېرېږي نو بيا دي ستره ودروي يعني داسي يو شى دي مخته ودروي چي لږ تر لږه اوږدوالى يې نيم گز وي او پلنوالى يې د گوتي په اندازه

(٢٤٥) وعن أبي جهيم قال: قال رسول الله ﷺ: لو يعلم المار بين يدي المصلي ماذا عليه، لكان أن يقف أربعين خيراً له من أن يمر بين يديه. (اخرجه البخاري - في الصلوة باب:١٠١، ومسلم - في الصلوة حديث:٢٦١، وابوداؤد - في الصلوة باب:١٠٨، والترمذي - في المواقيت باب: ١٣٤، والنسائي في القبلة باب:١، والدارمي - في الصلوة باب: ١٣٠، ومالک - في السفر حديث: ٣٤-٣٥، و احمد في المسند:٤/ ١٢٩)

(٢٤٦) وقد روي عن النبيِّ ﷺ أنه قال: لأن يقف أحدُكم مائة عام خير له من أن يمر بين يدي أَخيه وهو يصلِّي. (جامع الاصول في احاديث الرسول - النوع الاول في المعترض بين يدى المصلي، تحت رقم:٣٧٣٠)

وي يعني تر دې به کم نه وي زيات که وي خير دئ.

## (۷۰) لويه ګناه: داسي چا ته جماعت ورکول چي هغوی ځني ناراضه وي

رسول اللهﷺ فرمايي: پر درو (۳) کسانو باندي د اللهﷻ لعنت دئ:

۱. هغه څوک چي خلګو ته امامت ورکوي او هغوی ځني ناراضه وي.
۲. هغه ښځه چي شپه تېره کړي او مېړه ځني ناراضه وي.
۳. هغه مريی دئ چي د بادار څخه تښتېدلی وي.[۲۴۷]

رسول اللهﷺ فرمايي: د درو (۳) کسانو لمونځ نه قبلېږي:

۱. هغه څوک چي خلګو ته لمونځ ورکوي او هغوی ځني ناراضه وي.
۲. هغه څوک چي د عذر پرته لمونځ قضا کوي وروسته يې بيا قضا راګرځوي.
۳. هغه څوک چي آزاد انسان مريی کړي.[۲۴۸]

---

[۲۴۷] عن ابي سعيد قال: قال رسول اللهﷺ: ثلاث لا تجاوز صلاتهم رءوسهم: رجل أَمَّ قومًا وهم له كارهون، وامرأة باتت وزوجها ساخط عليها، ومملوك فَرَّ من مولاه. (أخرجه البيهقى: ۱۲۸/۳، رقم: ٥١٢٤)

[۲۴۸] عن عبد الله بن عمر أن رسول اللهﷺقال: ثلاث لا يقبل الله منهم صلاة: الرجل يؤم قومًا وهم له كارهون، والرجل لا يأتى الصلاة إلا دبارًا، ورجل اعتبد محررًا. (أخرجه أبو داود: ۱٦۲/۱، رقم: ٥٩٣، وابن ماجه: ۳۱۱/۱، رقم: ۹۷۰، والبيهقى: ۱۲۸/۳، رقم: ٥١٢٢)

# (۷۱) لویه ګناه: د لمانځه صفونه نه برابرول

رسول الله ﷺ فرمایي: چا که صفونه سره یوځای کړه (یعني په منځ کي یې خالي ځای وو هغه یې پوره کړ) الله ﷻ به یې د جنت سره یوځای کړي او کوم چا که صفونه سره پرې کړه الله ﷻ به یې د جنت څخه پرې کړي.[۲۴۹]

رسول الله ﷺ فرمایي: الله ﷻ او ملایکي پر هغه کسانو باندي درود وایي چي صفونه برابروي.[۲۵۰]

په یو حدیث کي راغلي دي، چي رسول الله ﷺ به په خپل لاس صفونه برابرول او فرمایل به یې: تاسو صفونه برابروئ که نه نو ستاسو زړونه به سره مختلف سي.[۲۵۱]

---

[۲۴۹] عن عبد الله بن عمر أن رسول الله ﷺ قال: من وصل صفا وصله الله، ومن قطع صفا قطعه. (النسائي في سننه، ج: ۲، ص:۹۳، ح: ۸۱۹)

[۲۵۰] عن البراء قال: قال رسول الله ﷺ: إن الله وملائكته يصلون على الذين يصلون الصفوف الأول، وما من خطوة أحب إلى الله من خطوة يمشيها يصل بها صفا. (أخرجه أبو داود: ۱۴۹/۱، رقم: ۵۴۳، والبيهقى: ۲۰/۲، رقم: ۲۱۱۸)

[۲۵۱] عن أبي مسعود قال: كان رسول الله ﷺ يقيم مناكبنا في الصلاة ويقول: لا تختلفوا فتختلف قلوبكم. (الطبراني في معجمه الكبير، ج: ۱۷، ص: ۲۱۵، ح:۵۸۷)

# (۷۲) لويه گناه:
## تر امام وړاندې ركوع، سجدې ته تلل

رسول الله ﷺ فرمايي: (تاسو تر امام وړاندې مه ځئ كه يو سړى ترامام مخكې ځي نو دى) د دې څخه نه بېرېږي چې سر به يې د خره سي او يا به يې ټول بدن د خره سي. (۲۵۲)

يعني څوك چې تر امام مخكې ركوع ،سجدې او يا د بل ركن د ادا په وخت كې ځي دومره لويه گناه ده، چې الله جلاله به يې د انساني شكل څخه واوړي ټوله بدن به يې د خره سي او يا به يې سر د خره سي.

په بل حديث كې راغلي دي، چې رسول الله ﷺ فرمايي: هغه سړى چې تر امام وړاندې ځي هغه د دې څخه په امن نه دئ، چې الله جلاله به يې سر د سپي كړي (يعني كه دا عمل وكړي دغه سزا به ويني). (۲۵۳)

ابوهريرة رضي الله عنه فرمايي: كوم سړى چې تر امام وړاندې په لمانځه كې پورته كېږي يا كښته كېږي د هغه تندى د شيطان په لاس كې دئ. (۲۵۴)

---

(۲۵۲) عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: أما يخشى أحدكم إذا رفع رأسه قبل الإمام أن يجعل الله رأسه رأس حمار أو يجعل صورته صورة حمار. (أخرجه أحمد: ۵۰٤/۲، رقم: ۱۰۵۵۳، وابن أبى شيبة: ۱۱٦/۲، رقم: ۷۱٤۷، والبخارى: ۲٤۵/۱، رقم:٦۵۹، ومسلم: ۳۲۱/۱، رقم: ٤۲۷، وأبو داود: ۱٦۹/۱، رقم: ٦۲۳، والنسائى:۹٦/۲، رقم: ۸۲۸، وابن ماجه: ۳۰۸/۱، رقم: ۹٦۱)

(۲۵۳) عن ابي هريرة قال: قال رسول الله ﷺ: ما يؤمن أحدكم إذا رفع رأسه قبل الإمام أن يحول الله رأسه رأس كلب. (أخرجه الطبرانى فى الأوسط: ۲۹۳/٤، رقم: ٤۲۳۹)

(۲۵٤) عن أبى هريرة قال: إن الذى يرفع رأسه قبل الإمام ويخفض قبله فإنما ناصيته بيد الشيطان. (أخرجه عبد الرزاق: ۳۷۳/۲، رقم ۳۷۵۳)

# (۷۳) لويه گناه: د ښځې يوازې سفر كول

د رسول الله ﷺ په زمانه كې چې ښځو كولای سوای چې جماعت ته ولاړې سي د فتنو بېره ډېره كمه وه. په هغه وخت كې هم رسول الله ﷺ د ښځو يوازې سفركول منع كړی وو، ځكه رسول الله ﷺ فرمايي: ښځه چې پر الله ﷻ او د قيامت پر ورځ ايمان لري يوازې سفر كول ورته روا نه دي تر څو پلار، ورور، مېړه او يا زوی ورسره نه وي.[۲۵۵]

په معاصر وخت كې چې فتنې دومره زياتې دي چې ځان ځنې خلاصول ډېرگران دئ، په داسې وخت كې د ښځې يوازې وتل په يقيني ډول فتنې د ځان سره لري.

علماء فرمايي: د ښځې يوازې وتل كبيره گناه ده ځكه لوی فساد د ښځې د وتلو له وجهې رامنځته كېږي، چې يو فساد يې زنا ته لار خلاصېدل دي.

---

[۲۵۵] عن ابن عمر رضي الله عنهما قال: قال رسول الله ﷺ: لا يحل لامرأة تؤمن بالله واليوم الآخر أن تسافر مسيرة ثلاث إلا ومعها ذو محرم . (أخرجه مسلم: ۹۷۵/۲، رقم: ۱۳۳۸ . وأخرجه أيضًا ابن حبان: ۴۳۵/۶، رقم: ۲۷۲۲)

# (۷۴) لویه ګناه: د جمعې لمونځ نه کول

رسول الله ﷺ فرمايي: چا که درې اوونۍ د جمعې لمونځ د سستۍ له امله پرېښودئ الله جل جلاله به يې پر زړه باندي مهر ورولګوي (چي په پايله کي به يې د عبادت کولو سره هيڅ مينه نه وي). [۲۵۶]

په بل ځای کي رسول الله ﷺ فرمايي: خبر اوسئ! ډېر ځلي به يو کس يوه رمه پسونه رانيسي بيا به د پسو د څرولو په موخه يو ميل يا دوه ميله ووزي هلته به هم واښه کم سي، بيا به نور هم پسي ولاړسي د جمعې په ورځ راسي خو دی به د جمعې لمانځه ته حاضر نه سي، بيا به دوهمه جمعه راسي بيا به لمانځه ته حاضر نه سي، بيا به درېيمه جمعه راسي بيا به لمانځه ته حاضر نه سي تر داسي بريده چي (د دغه ناوړه عمل په پايله کي به يې) الله جل جلاله پر زړه باندي مهر ولګوي بيا به د خير او شر توپير نه سي کولای. [۲۵۷]

---

(۲۵۶) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: حَدَّثَنِي عَبِيدَةُ بْنُ سُفْيَانَ الْحَضْرَمِيُّ عَنْ أَبِي الْجَعْدِ الضَّمْرِيِّ وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ قَالَ: مَنْ تَرَكَ ثَلَاثَ جُمَعٍ تَهَاوُنًا بِهَا طَبَعَ اللَّهُ عَلَى قَلْبِهِ . (ابوداود، ج: ۱، ص: ۱۵۸، ورقمه: ۸۸۸)

(۲۵۷) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مَعْدِيُّ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ عَجْلَانَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: أَلَا هَلْ عَسَى أَحَدُكُمْ أَنْ يَتَّخِذَ الصُّبَّةَ مِنْ الْغَنَمِ عَلَى رَأْسِ مِيلٍ أَوْ مِيلَيْنِ فَيَتَعَذَّرَ عَلَيْهِ الْكَلَأُ فَيَرْتَفِعَ ثُمَّ تَجِيءُ الْجُمُعَةُ فَلَا يَجِيءُ وَلَا يَشْهَدُهَا، وَتَجِيءُ الْجُمُعَةُ فَلَا يَشْهَدُهَا، وَتَجِيءُ الْجُمُعَةُ فَلَا يَشْهَدُهَا حَتَّى يُطْبَعَ عَلَى قَلْبِهِ. (ابن ماجة، ص: ۸۰، رقم: ۱۱۱۷)

په بل ځای کي رسول الله ﷺ فرمايي: چا که د جمعې لمونځ په قصده قضا کړئ نو يو دينار دي خيرات کړي، که يې يو دينار پيدا کولای نه سوای نو نيم دينار دي خيرات کړي.[٢٥٨]

په بل ځای کي رسول الله ﷺ فرمايي: د جمعې د لمانځه د پرېښودلو څخه منعه سئ که نه نو الله جل جلاله به يې پر زړونو باندي مهر ولگوي بيا به د غافلانو د جملې څخه وگرځي.[٢٥٩]

په بل ځای کي رسول الله ﷺ فرمايي: که چا د اړتيا پرته د جمعې لمونځ پرېښودئ الله جل جلاله به يې په داسي کتاب کي په منافق سره نوم وليکي چي بيا به هيڅ وخت نه بدلېږي او نه به خرابېږي.[٢٦٠]

په بل ځای کي رسول الله ﷺ فرمايي: څوک چي پر الله جل جلاله او د قيامت پر ورځ باندي ايمان لري د جمعې لمونځورباندي لازم دئ، مگر مريض، مسافر، ښځه، کوچنی او مريی خلاص دي. د دغو کسانو پرته هر څوک چي د بې فايدې کارو په وجه يا د تجارت په وجه د جمعې لمونځ پرېږدي الله جل جلاله به ځني بې پروا سي او الله جل جلاله بې پروا ذات دئ او داسي څوک دئ چي زيات حمد يې ويل کېږي.[٢٦١]

---

[٢٥٨] حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ حَدَّثَنَا نُوحُ بْنُ قَيْسٍ عَنْ أَخِيهِ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ عَنْ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَصَدَّقْ بِدِينَارٍ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَبِنِصْفِ دِينَارٍ. (ابن ماجه، ج : ٣ ص : ٤٤٣، رقم: ١١١٨، ط: المكتبة الشاملة)

[٢٥٩] أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَعْمَرٍ قَالَ: حَدَّثَنَا حَبَّانُ قَالَ: حَدَّثَنَا أَبَانُ قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ الْحَضْرَمِيِّ بْنِ لَاحِقٍ عَنْ زَيْدٍ عَنْ أَبِي سَلَّامٍ عَنْ الْحَكَمِ بْنِ مِينَاءَ أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ وَابْنَ عُمَرَ يُحَدِّثَانِ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ قَالَ: وَهُوَ عَلَى أَعْوَادِ مِنْبَرِهِ لَيَنْتَهِيَنَّ أَقْوَامٌ عَنْ وَدْعِهِمْ الْجُمُعَاتِ أَوْ لَيَخْتِمَنَّ اللَّهُ عَلَى قُلُوبِهِمْ وَلَيَكُونُنَّ مِنْ الْغَافِلِينَ. (سنن النسائي، ج: ٥، ص: ٢٠١، رقم: ١٣٥٣، ط: المكتبة الشاملة)

[٢٦٠] وعن ابن عباس أن النبي ﷺ قال: من ترك الجمعة من غير ضرورة كتب منافقا في كتاب لا يمحى ولا يبدل. وفي بعض الروايات ثلاثا. (رواه الشافعي، ج: ١، ص: ٣٠٨، ط: المكتبة الشاملة)

[٢٦١] روى أبو الزبير عن جابر أن رسول الله ﷺ قال: من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فعليه الجممة يوم الجمعة إلا مريض أو مسافر أو امرأة أو صبي أو مملوك، فمن استغنى بلهو أو تجارة استغنى الله عنه والله

په بل ځای کي رسول الله ﷺ فرمايي: د جمعې لمانځه ته حاضرېږئ، امام ته نژدې کښېنئ، څوک چي د جمعې د لمانځه څخه پاته سي الله جل جلاله به يې د جنت څخه پاته کړي. (۲۶۲)

## (۷۵) لويه ګناه: په دې نيت د يو چا څخه پور کول چي بېرته به يې نه ورکوي

رسول الله ﷺ فرمايي: چا که د يو چا څخه مال واخيستئ په دې نيت چي له منځه يې يوسي، الله جل جلاله به دی برباد کړي. (۲۶۳)

رسول الله ﷺ فرمايي: کوم سړي چي د يو چا څخه په دې نيت پيسې پور کړي، چي بېرته به يې ورکوي (خو په ژوند کي يې دا توان پيدا نه کړ چي ادا يې کړي)، الله جل جلاله به يې په قيامت ور ادا کړي. او کوم سړي چي د يو چا څخه په دې نيت پيسې پور کړې چي بيا به يې نه ورکوي، د قيامت په ورځ به د الله جل جلاله سره ملاقي سي الله جل جلاله به ورته وفرمايي: زه به د خپل بنده حق ستا څخه اخلم، نو د ده د نېکۍ به

---

غني حميد. (اخرجه الدار قطني، وقال علماؤنا -رحمهم الله- : ولا يتخلف أحد عن الجمعة ممن عليه إتيانها إلا بعذر لا يمكنه منه الاتيان إليها، مثل المرض الحابس، أو خوف الزيادة في المرض، أو خوف جور السلطان عليه في مال أو بدن دون القضاء عليه بحق. (تفسير القرطبي، ج: ۱۸، ص: ۱۰۳، ط: المكتبة الشاملة)

(۲۶۲) وأخرج عن سمُرة قال: قال رسول الله ﷺ: احضروا الجمعة، وادنوامن الإِمام، فإن الرجل يتخلّف عن الجمعة، فيتخلّف عن الجنة، وإنه لمن أهلها. (اللمعة في خصائص الجمعة، ج: ۱، ص: ۲)

(۲۶۳) حدثنا يعقوب بن حميد بن كاسب ثنا عبد العزيز بن محمد عن ثور بن زيد الديلي عن أبي الغيث مولى ابن مطيع عن أبي هريرة أن النبي ﷺقال: من أخذ أموال الناس يريد إتلافها أتلفه الله. (أخرجه البخاري في الزكاة - باب: ۱۸، والاستقراض باب: ۲، وابن ماجة في الصدقات باب: ۱۱، برقم: ۲۴۱۱، وأحمد في المسند:۲ / ۳۶۱، ۴۱۷)

واخيستل سي و هغه چا ته به ورکول سي چي ده پور ځني اخيستی دئ. که يې نيکۍ نه درلودې نو د هغه چا گناوي به راواخيستل سي چي ده پور ځني اخيستی دئ پر ده به ولوېږي او د هغه پر ځای به دی په جهنم کي سزا تېره کړي.(٢٦۴)

رسول اللهﷺ فرمايي: کوم سړي چې په دې نيت پور وکړئ چې بېرته به يې نه ورکوي، د اللهﷻ سره به په داسي ډول ملاقي سي چي غلا کوونکي به وي.(٢٦۵)

رسول اللهﷺ فرمايي: که څوک مړ سو يو دينار او يا يو درهم پور باندي پاته وو د قيامت په ورځ به د ده د نېکيو څخه ورکول کيږي، ځکه په هغه ورځ به نه درهم وي او نه به دينار وي.(٢٦٦)

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وآله واصحابه اجمعین



(٢٦٤) حدثنا أبو مسلم الكشي ثنا حجاج بن المنهال ثنا حماد بن سلمة عن جعفر بن الزبير عن القاسم عن أبي أمامة أن رسول الله ﷺ قال : من أدان دينا وهو ينوي أن يؤديه أدى الله عنه يوم القيامة، ومن استدان دينا وهو لا ينوي أن يؤديه فمات، قال الله عزوجل يوم القيامة: ظننت أني لا آخذ لعبدي بحقه فيؤخذ من حسناته فيجعل في حسنات الآخر فإن لم تكن له حسنات أخذ من سيئات الآخر فجعلت عليه. (المعجم الكبير، ج: ٨، ص: ٢٤٣، ح: ٧٩٤٩)

(٢٦٥) حدثنا هشتم بن عمار ثنا يوسف بن محمد بن صيفي بن صهيب الخير حدثني عبد الحميد بن زياد بن صيفي بن صهيب عن شعيب بن عمرو . حدثنا صهيب الخير عن رسول الله ﷺ قال: أيما رجل يدين دينا وهو مجمع أن لا يوفيه إياه لقي الله سارقا. (أخرجه ابن ماجة في الصدقات - باب من أدان دينا لم ينو قضاءه) حدثنا هشتم بن عمار ثنا يوسف بن محمد بن صيفي بن صهيب الخير حدثني عبد الحميد بن زياد بن صيفي بن صهيب عن شعيب بن عمرو حدثنا صهيب الخير عن رسول الله ﷺ قال: أيما رجل يدين دينا وهو مجمع أن لا يوفيه إياه لقي الله سارقا. (أخرجه ابن ماجة في الصدقات - باب من أدان دينا لم ينو قضاءه. ورقمه: ٢٤١٠)

(٢٦٦) حدثنا محمد بن ثعلبة بن سواء ثنا عمى محمد بن سواء عن حسين المعلم عن مطر الوراق عن نافع عن ابن عمر قال: قال رسول الله ﷺ: من مات وعليه دينار أو درهم قضى من حسناته ليس ثم دينار ولا درهم. ( أخرجه ابن ماجة في الصدقات - باب:١٢، برقم: ٢٤١٤)